



# دیوان

## احمد شاه ابدالی

پښتو اکېډمي د پېښور يونيورسټي





# دیوان

# احمد شاه ابدالی

ترتیب او تدوین:-

قاضی هدایت الله

پیژندګلو:-

مولنا عبدالقادر

پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي



ب

دپښتو اکیډیمۍ دَ مطبوعاتو د سلسلې نمبر ۲۴



دوهمه اشاعت :- نومبر کال ۱۹۶۳ء
تعداد :- یو زر (۱۰۰۰)
قیمت :- درے نیمے روپیۓ

په اهتمام دَ خیال بخاری
په پبلک آرټ پرلیس پېښور کښې چاپ شو۔

# پېژندګلو

دا احمد شاه ابدالي پښتو کلام د کتاب په شکل کښې په وړومبي ځل نه چاپ کېږي
د کابل د پښتو ټولنې له طرفه "د لوی احمد شاه بابا" په نوم څو کاله وړاندې د احمد شاه
ابدالي پښتو کلام راغونډ شوی او چاپ شوی وو. ولې په دغه خواږه کښې به دېوښې
پوهه او خبردارو عالمانو او طالب علمانو په ترڅ او لاس کښې ډېر کم غلطۍ را ایستلې وو او دي
چه هغوی ته دا معلومه ده چه احمد شاه ابدالي د پښتو شعر سره هم پېښه ده د
ده د فارسي کلام د وجود نه څو ډېر خلق خبر وو. ولې په پښتو کښې شعر ویلو ده د
ژوند د عامو واقعاتو په تاریخ کښې ډېر کم راغلي دي.

د خدائے شکر کړو ته کوو چه په کال ۱۹۵۵ء کښې څه وخت چه پښتو اکېډمي د پېښور
یونیورسټۍ سوري لاندې جوړه شوه، نو د هغې د هرکلي نه ورته د پښتو ادب او کیاب
کتابونه را روان شول. او په وړومبو څو میاشتو کښې چه کوم بېش بها نسخې اکېډمۍ ته
را ورسېدې په هغې کښې د خوشحال خان یو بنکلی او منقش دیوان او د احمد شاه ابدالي
د پښتو کلام دوه مجموعې او د معظم خان او صدر خان د کلام مجموعې شاملې وې.
دا کتابونه اکېډمۍ ته څنګه په لاس راغلي دي د هغې قصه به د دې کتاب د مرتب او
ایبټ کوونکي ښاغلي قاضي هدایت الله په دیباچه کښې ذکر شوې ده. د احمد شاه
ابدالي دیوان یوه بله نسخه د برټش میوزیم لندن نه اکېډمۍ ته د مایکرو فلم
په شکل کښې را رسېدلې ده. د مطالعې او مقابلې نه پس دا معلومه شوه چه د
احمد شاه د ټول کلام مجموعه که راغونډه او چاپ شي نو دا به زیاته مکمله وي

ځکه اکیډمۍ دا فیصله اوکړه چه دا دیوان چاپ کړي. احمد شاه بابا د هند و پاکستان
په تاریخ کښې چه کوم لوئ مقام لري د هغې د تفصیلي ذکر ضرورت نۀ دے دیوان په
دیباچه کښې نه ښکاري. په فارسي، اُردو او انګریزۍ ژبو کښې په احمد شاه، په
حیثیت د یو سپاهي، فاتح او جرنیل ډیر څه لیکلے شوي دي او ډیر لوئ څه لیکلو
ګنجائش پکښې پاتے دے. په تېرو څو کالو کښې د احمد شاه بابا د ژوند او کارنامو په
تاریخي اهمیت د پروفیسر ګنډا سنګه (د پټیالے د لائبریرۍ مهتمم) په کتاب
"احمد شاه دراني" او د سرا ولف کیرو په کتاب "دی پټهانز" کښې ډیر څه
لیکلے شوي دي. د اکیډمۍ په قبضه کښې څۀ نور دستاویزونه داسے راغلي دي
چه که الله پاک عالمانو او طالبعلمانو له په دے میدان کښې د تحقیق او لټون
توفیق ورکړي نو یقین دے چه د تاریخ په پاڼو به د احمد شاه ابدالي او د
هغۀ د زمانے د نورو وتلو جرنیلانو لکه نجیب الدوله وغیره څۀ ډیرے نورے
خبرے میدان ته راوزي. پروفیسر ګنډا سنګه د خپل کتاب په تمهید کښې
وائي چه :-

" د اتلسیم صدے د قبلئیز هندوستان د تاریخي تحقیق په میدان کښې
زۀ په دے خبره ډیر حیران شوم چه احمد شاه ابدالي په وسطي ایشیا
کښې یو ډیر لوئے تاریخي شخصیت وو. او سره د دے چه زۀ په یو داسے کور کښې
لوئے شوے وم. چه د احمد شاه په حمله به هلته ورکوتوالي کښې داسے قیصے
آورېدے چه هغه یو داسے مار سړے وو چه په هندوستان راغونډه شو او په
منونو سره زر او په زرګونو غلامان ئے ځان سره خوندي کړل. ولے چه زما
مطالعه څومره زیاتیده نو مانه د دے سړي په ژوند کښې د لویۀ والي خبرے مخے ته
راتلے. او زۀ دے نتیجے ته اورسیدم چه دے د ایران د نادر شاه افشار په کار نوے

[illegible] حالت کښې دهغه نه کم نه وو۔"

[illegible] ګلنډ سنګه مخکښې لیکي چه " ما ډیر تحقیق اوکړو چه دَ احمد شاه دَ
[illegible] بوه مکمله نقشه بیا موم‌م ولې په دے حیران شوم چه محققینو
[illegible] ده ل. په تاریخ کښې هغه مقام نه وو ورکړے دکوم چه دے مستحق
[illegible] ښاد ابنو دے ده چه دے دومره لوئے فاتح اودَ نظام مملکت دَ اصولو
واضح وو۔ اودا چه دے دیو لوئے ایشیائي تمام راژوندے کونکے او محافظ وو۔"
[illegible] احمد شاه دتاریخي اهمیت کافي سند دے۔ احمد شاه خو دَ سکهانو او
[illegible] جنګینه لے وو۔ نو دَ یو سیکه فاضل دا سند دهر مؤرخ دَ سندهٔ
[illegible] لنړل پکار دی۔

[illegible] شاه آبدالي دا دیوان دشاعرئ دَ اړخه نه دی کتل پکار۔ کیدے
[illegible] شعر ځنې لوستونکو ته دَ شعر دَ لوازماتو نه ډویه نیمګړے ښکاره شي
[illegible] دهٔ عقائد، ایماني قوت، اخلاص، مینه اوپت او بیا دَ دهٔ علم او تصوّف
[illegible] مجموعه کښې دهٔ شخصیت په یو نوي رنګ کښې ښکاره کوي۔ یو طرفه
[illegible] ل طرفته ضوق، دادواړه کیفیتونه په یو ذات کښې جمع کیدل عجیبه
[illegible] کاري۔ په دے دزیات څه لیکلو په ځائے که لوستونکی دده دا دیوان اولولی
[illegible] وینا ثبوت وی۔

[illegible] احمد شاه خپل کلام دے۔ داکیږي نه طرفه به ډا تلونکو څو میاشتو
[illegible] شاه شاهنامه هم چاپ شي۔ دا پښتو مثنوي دے چه د احمد شاه دَ
[illegible] واقعات پکښې ذکر شوي دي " دَ شاهنامهٔ احمدیه " په نوم په ناډی
[illegible] د مثنوي د سیالکوټ یو مشهور شاعر نظام الدین عشرت لیکلے دے
[illegible] نظام الدین عشرت دَدے مثنوي درے قلمي نسخے دي چه یوه دحیدرآباد په

آصفیه لائبریرۍ کښې دي ، بلکه په برټش میوزیم کښې او د انډیا ... د خالصه کالج امرتسر په کتب خانه کښې ده ۔ هم په دې کتب خانو کښې د نظام الدین عشرت یو بل کتاب هم موجود دے چه نوم ئې "نادرنامه" دے ۔ د نادر نامې یوه قلمي نسخه په پېښور اکیډیمۍ کښې موجوده ده او اکیډیمي د کوشش کوي چه د شاهنامه احمدیه یوه نسخه حاصله کړي ۔ یقین دے چه په دے خواوشا کښې د شاهنامه احمدیه فارسي نسخه هم ضرور چاپه شوې وي ۔ خدائے دې اوکړي چه دغه نسخه چرته پیدا شونده شي چه د محققینو په کار راشي مونږ ته دا معلومه شوې ده چه د سند د مشهور عالم او محقق پیر حسام الدین راشدي د شاهنامه احمدیه د چاپ کولو بند بنا کړې ۔ دا د احمد شاه په حقله داسې اهم دستاویز ثابتیږي چه چه د خواوشا کښې موندے شوے او چاپ شوے وے ۔ اکیډیمۍ له که دا کتاب په پښتو راغے نو په چاپ کولو کښې به ئې هیڅ ډیل او نکړي ۔ ولے کاش چه د دے خواوشا ذاتو په زړو قلمي نسخو ورکولو کښې شو متیانه وے کړے ۔ شاهنامه احمدیه چه په بل ځائے کښې پیدا موندے شي او چاپ شي نو د غني دا شعر به زمونږ د زړه د حال پوره اظهار او کړي :-

غني روز سیاه پیر کنعان را تماشا کن
که نور دیده اش روشن کند چشم زلیخا را

(مولانا عبدالقادر)

---

# دیباچه

احمدشاه ابدالي خو په حیثیت د لوئ فاتح هر څوک پیژني. ولې ډیرو کمو خلقو ته دا معلومه ده چه دے که یو طرف ته یو نامتو جنګیالے او زبردست سپاهي وو. نو بل طرف ته دے یو رسیدلے صوفي، لوئ عالم او خوږ ژبے شاعر هم وو. او په پښتو او فارسي دواړو ژبو کښې ئې شعر کړے دے. او دیوانونه لري. د پښتو او فارسي کلام مجموعه ئې د کابل پښتو ټولنے څو کاله اګاهو چاپ کړے هم دي. د پښتو اکیډیمئ د قلمي کتابونو د راغونډولو په کوشش کښې الله تعالیٰ برکت واچوو او مونږ ته د احمد شاه درے قلمي دیوانونه په لاس راغلل په دے دریو دیوانونو کښې یو خو مونږ ته د مائکرو فلم په شکل کښې د برټش میوزیم لندن نه په لاس راغلے دے او د باقي دوو قلمي نسخو دا عجیبه قصه به دلته بے ځایه نه وي. دا د کال ۱۹۵۰ء خبره ده چه د پښتو د یو مشهور او مقتدر محمدزي خاندان یو سر پرستلي زلمے سردار عبدالرشید خان په کراچئ کښې د حکومت پاکستان په مرکزي کابینه کښې وزیر وو دهٔ د کراچئ نه د پښور یونیورسټئ د دغه وخت وائس چانسلر ډاکټر رضی الدین صدیقي په خوله داکیډیمئ مشر مولانا عبدالقادر ته په یو پیغام کښې دا عجیب ویلي وو چه په کراچئ کښې فلانکي فلانکي سړي سره د پښتو ډیر ښکلي او منقش کتابونه دي او خرڅول ئې غواړي چه دغه کتابونه

په څه صورت هغې علاقې ته اورسی دکومے نه چه داډ ټونک د ریاست
د نواب کتب خانے ته رسیدلی وُو. والیُ چه د ټونک د کتبخانے د کتابونو دَ
سنبھولو په موقع دَ چا په زړهٔ کښے دا خیال راغلے وو چه که چرے داډول
کتابونه هند وحکومت دَ ډلی ته وړی نو نَو دِ سی و لے دا پښتو کتابونه خو
ورله په هیڅ جوړ نهٔ ورکوُو. دا قلمی ګلوړ نسخے په څه چل هند کراچیُ
ته راوُرسیدے او دَ اکیډیمیُ مشر دَدے حاصلولو ته ملا وتړله.
کراچیُ ته لاړ او دَدے کتابونو ډیر او ډیر ونکو سره ئے د قیمت فیصله
اوکړه او دا کتابونه نن دا کیډیمیُ په ټولو کښے بښکلے ذخیره ګنړلے شی
په دے کښے یَو د خوشحال خټک مکمل دیوان دے چه زرّی حاشیے لری
اولویه تقطیع. دویُم کتاب د مصری خان ګګیانړی او د سکندر خان
خټک یو ځائے جلد تړلی دیوانونه دی. دا دواړه هم د غه رنګ بښکلی
لیک دی لکه څنګه چه د خوشحال خان دیوان لیک دے. په دے کښے
د مصری خان دیوان اکیډیمیُ دَ ډیر تحقیق نه پس چاپ کړے دے
او ترلرے لرے خورشوے دے. دوه پاتے کتابونه د احمد شاه
دیوانونه وو. یو خو ډیر بښکلے زرّی نقشونو کښے په نستعلیق کښے لیکے وو
اوبل بښکلی نسخ کښے. زمونږ د نشرواشاعت په سلسله کښے مونږ دَ
دے کتابونو چاپ اوتدوین ته توجه کوله. دا دوه قلمی نسخے او یو دیوان
مائکروفلم او بیا د عبدالحئ حبیبی شایع کړے "دیوان احمد شاه
ابدالی" زمونږ دَ دے نوی چاپ بنیاد ګرځیدلے.

د احمد شاه ابدالی په شاعرئ باندے د څه لیکلو نه اګاهی سبب
دی چه هغهٔ په شخصیت، په حیثیت د یو مرد میدان، فاتح اعظم او

موبږ يو سرسري غوندې نظر وا چوله شي.

د يوه عامه مقوله ده چه پښتون د خپلې پېر مړي نه د خود سرۍ نه بالاتيا په ملي نه پوهېږي - دا وينا تر يوې حده درسته ده ولې شيرشاه سوري او احمد شاه ابدالي غلطه ثابته کړه - د شيرشاه سوري مړانه، شجاعت او د ملک د ننه نظم و نسق، عدل و انصاف او د هر قسم امن و امان حال هر چا ته معلوم دے.

احمد شاه ابدالي خپل قوم را غونډ کړو. د اطاعت امير جنبه ئې پښتو وا چوله او د غيرت پېغه ئې خپل قام او د هندوستان د مسلمانان د ملاتړ په نيت ميدان ته را ووت.

په کال ۱۷۴۷ع د نادر شاه افشار د قتل وروسته پس د هغه وسيع سلطنت ټکړې ټکړې او لټ پټ پروت وو. پښتانه د نادر شاه په مړسته کښې د ننګونو نه پس ستړي ستومانه خپلو ځمکو ته راتلل او د دوی مشرانو دا خبره محسوسه کړه چه د هر څه نه بره چې د ملک نظم و نسق ډېر ضروري دے - په دې خيال د غټو غټو قبيلو مشران په ښار کښې د شيرسرخ په زيارت کښې را غونډ شول او د بادشاه ټاکلو په غرض ئې يوه لويه جرګه اوکړله. په دغه جرګه کښې ټوله پښتانه سرداران شامل وو. چا چه خپل ځان د نورو نه مشر او حقدار ګڼلو. د مشرانو حاجي جمال خان بارکزي، محمد خان پوپلزي، موسی خان اسحاق زي، نصرالله خان نورزي او نور محمد خان غلزي او دا نور وو. د انتخاب شرط دا وو چه تر څو پورې ټول مشران په يوه خوله يو سړے خوښ نه کړي او يو مشر کښې ظلم د اختيار

مخالفت او کړی نو هغه انتخاب به نامنظور وی - دا جرګه اته ورځې
کښیناستله - ولې په یوکس د ټولو په جمع صلاح رانغله - وجه یې دا وه
چه په پښتنو کښې اکثر قبیلوی رقابت موجود وی او یوه قبیله هم ځان
د بلې نه کم نه ګڼړی - نو هریو پښتون سردار دا خواهش لرلو چه
زه د بادشاه شوے - په نهم ځل چه جرګه راغونډه شوه او لا څه
فیصله نه وه شوے - چه صابر شاه نوم یو درویش چه په دغه
زمانه کښې هرچا یو خدایے رسیدلے ولی منلو - راپورته شو او د یو
ابدالی زلمی احمد خان نوم یې د دغه منصب دپاره تجویز کړو - احمد خان
د نادر شاه د پښتون فوځ نائب سالار وو او د هغه د محافظ دستې
مشری یې هم کړې وه - ټولو پښتنو سردارانو په اتفاق سره د
صابر شاه تجویز منظور کړو - او احمد خان د احمد شاه ابدالی په
نوم د بادشاهۍ په مسند کښینولے شو۔

احمد شاه ابدالی د افغانستان ړومبے بادشاه وو چه خپل تمام
په یوه خوله او په جرګه او جمهوری طریقه خوښ کړے وو - دے په
تمام قبیله او ټبر کښې د نسب د هیچا نه کم نه وو - او د ښو صفتونو په وجه
د هر چا نه اوچت وو - دے د ښکلی شخصیت، د اعلی تدبیر او د فطری
ذهانت خاوند وو - د پښتنو سردارانو د غه انتخاب ډیر موزون وو
او د جمهوریت یو داسے ښائسته نمونه یې دنیا کښې پریښوده چه د
دنیا د سیاسی تاریخ په دغه دور تر دغه وخته پورے په هیڅ ملک کښې
زدے مثال نشی موندے - او نن هم یو بادشاه داسے نشته چه وی
بادشاه ولے خلقو په جرګه او جمهوری طرز خوښ کړے وی۔

احمد شاه ابدالي د پښتنو کړې وړې او خورې ورې قبيلې را غونډې کړې او خپله ئې مرکزیت سره د هغه علاقو چه ګټلي ئې وې - يو مکمل نظام حکومت لاندې راوستې - په کال ۱۷۷۳ء کښې کوم وخت چه احمد شاه ابدالي وفات کيدو نو بادشاهت ئې د آمو دريا ب د غاړو نه تر بحيرهٔ هند پورې رسيدلې وو - هغه خپلو ته باد شاه نه وو - بلکه د قامي جرګې يو مشر وو - هر کار به ئې د قبيلو د سردارانو په صلاح مشوره کولو - جے - ډی - کننګهم ( J.D. Cunningham ) چه د سکهانو تاريخ ليکلې دې - د احمد شاه ابدالي په بيان د رومي مؤرخ ټيسيټس ( Tacitus ) هغه قصې ته اشاره کړې ده په کومه کښې چه د رومي شهنشاه ګيلبه حال ليکلې دې - دې والي چه د رومي شهنشاه ګيلبه په شان احمد شاه ابدالي هم ډير جفاکش ، اولوالعزم ، د توري سړې او فاتح وو ، خو د سلطنت نظم و نسق ئې نشو کولې - خو د سر اولف کيرو په خيال احمد شاه ابدالي د دې نه زيات وو - سر اولف کيرو د ډاکټر ګنډا سنګه په کتاب " احمد شاه دراني " باندې په خپله تبصره کښې ليکي :- " احمد شاه دراني د يو افغان سلطنت بنياد کيښود ، چه اوس هم د هغې سلطنت والی د هغه د قبيلې د يو بل دراني خانګې په لاس کښې دې - زړه ورتيا او رعب د هغهٔ په ختهٔ کښې اخښلې وو - هغهٔ په افرادو او قبيلو کښې به تنظيم راوستلو کښې ماهر وو - هغه يقيناً مرد ميدان وو - خو فطرتاً زړهٔ سواندې وو - سياست ئې داوو چه تر خپله وسه به ئې د روغې جوړې کوشش کولو - هغه يو داسې بادشاه وو چه هيڅ ئې عوامو سره تعلق نه وو پريښې - هغه د خدائے په مينه مستند وو

مادرزادے پہ دا بجرہ پیدا شوے
کہ دے بجرہ دوصال وہ ھم غریب

مغہ کس تہ ئے پہ دکہ خولہ بنیرے کړی دی دچازړہ چہ د مینے نہ خالی دی
وائی :- چہ لہ عشقہ خبر نہ وی خدائے دے واخلہ
کہ ظاھر صورت بادشاہ دکل عالم وی

سرہ د دومرہ شان وشوکتہ احمد شاہ ابدالی خپل ځان دخوارو غریبو
بے خبرہ نہ دے ساتلے ۔ وائی :-
چہ خدائے لوئے کړے احمدہ!
تل دخوارو دستګیری کړہ

کلہ کلہ ئے ځان تہ ھم فکر شی او پہ خپلو کړو کارو نو نادم شی ۔
وائی :- تہ چہ نصیحت کوے احمدہ
ولے دنیا تا نکړہ لتاړہ

څنے غزلونہ ئے ډیر خوندناک دی او پہ خپل مخصوص رنګ کښے ئے ویلی دی
دنمونے پہ طوریو لاندے ورکوم :-

سخ دآئینے دے چہ دے تل ومخ تہ کوری
سخ دلونګین دے چہ دے پاس پہ سینہ خوری
نہ دی ستا پہ غوږو غږے غږے مرغلرے
وصل دی پہ میا شتے پوهے یو سربل سرستوری
روغ مے کړہ لہ رنځہ چہ دخولے بنیرے دے داو رم
شهد وشکر راکړے چہ مے ستا شونډے وزوری

زهٔ که ډوب په غم يم تل دې ډوب يم چې عاشق يم
تا دې خدائے دلبره تل له هرې بلا ژغورې
ظلم دې د دوو سترګو هر کوره په ما زور شهٔ
څه کړم توان مجال د زورو زورلري کمزوري
ما وته ارزان دي بيا تر مشکو تر عنبرو
څوک که تورې خاورې ستا د پلهٔ په بها پلورې
دروي ستا ولوړته په ارمان کاتهٔ کا
سپينې په کاتهٔ شو احمد شاه د سترګو تورې

---

يو غزل يې د فارسي هم د نمونې په طور اوکوړئ :-
چو برمن تير مژګان ميزند آن شوخ ګلګونم
چو لاله داغ بر دل تا سراپا غرق درخونم
ز سوزِ دل همی بارم شب و روز اشکِ حسرت را
ز خونِ دل نشسته بر کنار رود جيحونم
ز سوزِ آتشِ عشقت که چون افروخت بر دلها
زِ لبِ سوز دلم هرګز نميدانم که من چونم
نمی پرسی اګر از من ببين حالِ دل و جانم
که از غيرت فتاده بر زمين چون بيد مجنونم
به ګردِ ګنج رويت چون بديدم اژدرِ دلها
هميسوزم همې نالم ندانم خويشتن چونم





دلِ احمدؔ زِ تو دارد ہمیں یک آرزوئے خود
بہ دیدارت رسم ماندز گریہ چشم جیحونم

---

# بسم الله الرحمٰن الرحيم

بسم الله الرحمٰن الرَّحيم زما ‏ ‏ ‏ ‏ ده دُر د زړهٔ په اقليم زما
بسم الله الرحمٰن الرَّحيم زما ‏ ‏ ‏ ‏ بصر د زړهٔ ده سليم زما
بسم الله الرحمٰن الرَّحيم زما ‏ ‏ ‏ ‏ ب ياور ميم در نعيم زما
بسم الله الرحمٰن الرَّحيم زما ‏ ‏ ‏ ‏ بسم (الله) د دهر ابر كريم زما
بسم الله الرحمٰن الرَّحيم زما ‏ ‏ ‏ ‏ ده (د) روح بحر عميم زما
بسم الله الرحمٰن الرَّحيم زما ‏ ‏ ‏ ‏ نور د زړهٔ په حريم زما

بسم الله الرحمٰن الرحيم زما
احمد كا نا... رب رحيم زما

مصطفیٰ يا مصطفیٰ ‏ ‏ ‏ ‏ مصطفیٰ يا مصطفیٰ
مصطفیٰ يا مصطفیٰ ‏ ‏ ‏ ‏ فريادرس يا مصطفیٰ
د به زړهٔ مې ډېر ويښيږي ‏ ‏ ‏ ‏ د رسول كفٔ مې ياديږي
د عشق اور مې رانګيږي ‏ ‏ ‏ ‏ فريادرس يا مصطفیٰ
په رسول مې زړهٔ نازيږي ‏ ‏ ‏ ‏ كل امت پرې هوسيږي
چې په مونږ به ورحميږي ‏ ‏ ‏ ‏ فريادرس يا مصطفیٰ

---

ع۱ مخفف د كفين نه په معنیٰ د تلو يعنی تد مونه د حضور عليه السلام ۔

نن زما سترګې ژړېږي | زړهٔ جرس غوندې زنګیږي
وسک درد مې ته خولې خیږي | فریادرس یا مصطفیٰ
د رسولؐ کرم ډیر ډیر دے | په دین ئې وړې سیر دے
چه د خدائے په دربنے تیر دے | فریادرس یا مصطفیٰ
ت اوس ووایه رسولؐ | ستا وینا په ما قبول
په کرم دِ بنادیم نهٔ ملول | فریادرس یا مصطفیٰ
زړهٔ ستا د کوڅې خاورے | سر دې هغه خاورے
چه ستا قدم په شاوړی | فریادرس یا مصطفیٰ
زهٔ د تغری توړے ایرے یم | هم دِ جار د آس ترسو یم
کهٔ هوړے یم که دلے یم | فریادرس یا مصطفیٰ
د ګناهو شرمنده یم | له خجلت سرافګنده یم
د دے نفس په خوله ګنده یم | فریادرس یا مصطفیٰ
سر تر پایه ګناه پوره یم | که غایب یم که حضور یم
دنا مے د تا مزدور یم | فریادرس یا مصطفیٰ
اے زمونږ نبی حیاتَ | ته نظر وکړه وماتَ
د امت حیله وتاتَ | فریادرس یا مصطفیٰ
زمونږ نبی اکبره! | هجران ولیستو له بره
که مولاس ولسے سروره | فریادرس یا مصطفیٰ
زړهٔ مے هو سیږي | ستا جمال مے ډیر یادیږي
که نظر دِ په ما کیږي | فریادرس یا مصطفیٰ
د نبیؐ سترګے کلونه | مروارید ئې سپین غابنونه

لاله ګون ئې رخسارونه — فریادرس یا مصطفیٰ
ښایسته دده موی ونه — لکه مشک هسې بوی ونه
پرې میین د اُمت زړونه — فریادرس یا مصطفیٰ
د نبي ؐ ؤو ښه خویونه — په دوه لاس ئې کړه دا دونه
پر اَصحاب لکه کلونه — فریادرس یا مُصطفیٰ
د ښه خدائ په کرمونه — لاس ئې رسیږي ترزنګنونه
تل په غزائې کړه جنګونه — فریادرس یا مصطفیٰ
په تسبیح ئې سره شونډونه — د ښه خدائې له کرمونه
نبي ئې له نور رونه — فریادرس یا مصطفیٰ
په قد میانه بالا ؤو — هم ئې حسن په ښایسته ؤ
هم د ښه حبیب د خدا ؤو — فریادرس یا مصطفیٰ
سینه ئې پکه وه له علمه — هم نفس ئې ډوله حلمه
ملائې ښایسته قد ئې حاکم — فریادرس یا مصطفیٰ
قاب قوسین ئې مرتبه ده — زمونږ پرې عقیده ده
پرې را غلې کلمه ده — فریادرس یا مصطفیٰ
ده په نفس تیرې ترلې — ګُلې په صبر وې نیولې
په ژبه د حق ثنا وئیلې — فریادرس یا مصطفیٰ
زړه ئې له اخلاصه — له رحمته حق شناسه
نن دی الغیاثه — فریادرس یا مصطفیٰ
که فراق په زړه زهیر کړم — یا ئې غم په غم شبګیر کړم
زه به ستا نامه دستګیر کړم — فریادرس یا مصطفیٰ

لاس مې نیولی په زاری — درد نه دې د نا اُمیدی

چه قبول دې زاری — فریاد رس یا مصطفیٰ

د هجران بدې خوارې — ډیر زهیر کړم په دیسې

په یار خوږ مې اوښکې څڅوله لوئ — فریاد رس یا مصطفیٰ

زهٔ که هوسیږم — ستا کرم باران پر نازیږم

لکه گل پرې تازه کیږم — فریاد رس یا مصطفیٰ

څلور یاران دې منور — لکه آسمان کښې زیږي نمر

واړه رښتینی لکه سحر — فریاد رس یا مصطفیٰ

ابو بکرؓ و عمرؓ — بل عثمانؓ و بل حیدرؓ

څلور واړه دَ دین گوهر — فریاد رس یا مصطفیٰ

نبیؐ وو لکه نمر — دین ئې ترا ابده منور

دې ختم پیغمبرؐ — فریاد رس یا مصطفیٰ

یا مصطفیٰ قبول ئې کړه دعا — بې تا نهٔ لرم بله التجا

چه همیش کوم ثنا — فریاد رس یا مصطفیٰ

قل هو الله اَحَد — الله الصَّمَد

په روح دَ مُحمّدؐ — فریاد رس یا مصطفیٰ

زما دسترګو توری — د رسول په لوری گوری

که رسول را ته وگوری — فریاد رس یا مصطفیٰ

زما په زړهٔ کره ده — چه را غلی کلمه ده

هم دَ اوُبه دې لاړې پیوه ده — فریاد رس یا مصطفیٰ

زهٔ احمد شاه نولیږم — په خیل عمر شرمیږم

چه څفا اے ته به څرنګ دریږم    فریادرس یا مصطفیٰ
چه دا بیان نو لیسنه    احمد دِ په دُعا یادوینه
کړنده دچا دعا وروړ سینه    فریاد رس یا مصطفیٰ

## ولهٔ ایضاً

کهٔ ږوایم رښتیا    وابه نه وهم زړهٔ لرتا
ننګ ناموس مې پرتا یبنی    کهٔ بد نوم مې وی پیدا
بد نامی مې نیکنامی ده    که مې مینه وی رښتیا
چه رقیب په ستر ګو وینم    کړم توکل په رښتیا
له اوله سربازی کړم    په تېره توره دَ لاَ
کړهٔ مې لا په لا نفی کړه    زړهٔ په تل اثبم بقا
اختیار ږوتوله لاسه    تر ندا ره "قالوابلیٰ"[1]
معرفت قالوابلیٰ دې    معرفت معنیٰ آتا
بقا بجره مشوشه    الفَ یو ستر آیدا
دَ وحدت په ملک ووهې    هُویت[2] څېره معنیٰ
احدیت دبّ باورشو    تَ توحید وایه ما
ثَ ثبوت نورکړم    ثبوت نور د مصطفیٰ
چه عالم پیدا نه وو    ما د نور تر له ملا
دې آمرز نه دهرچیا    په قدم مې شه فنا

---

[1] په بله نسخه کښې دا مصرعه داسې ده :- " بیا د نفی ماسوا "
[2] دَ اللّٰه تعالیٰ وزات لوې واله۔

نور ویل پریږده احمده
که ویل د مصطفےٰ

په خوار غله محبوبا عجب ښکار کا د لربا
هره چار په مکارۍ کا عاشق خونه که فنا
دا په څېل حسن غروږ په عاشق پرې وته بلا
علاج نه لرے عاشقه پریکړه سر په تیغ دَ لا
که ته سر پریکړے راشے دا به وو یے اعلیٰ
رقیبان دی په دالاز کښے دا په تل لاحول و لا
که ته خلاص شوے له رقیبه کړے به سیر الی الله
د الّا الله سیر ونه پریږدی میوه واخله دَ بقا
دَ بقا میوه هم پریږده کړه د هو پټکے ترملا
که د هو پټکے ترملا کړے جهان ستا تر ابدا
احمد خدائے په مال اختیار کړه
چه اختیار مشکل کشا

هسے کرتری په زړهٔ مینه دَ لیلا چه ثناوائی مجنون تل دَ لیلا
وائے نه خستیل سبق په دا دنیا کښے سبق بے له خال و خطه د لیلا
دهٔ ته خوب بے بیغمی تل د غزه وینه چه ئے خیال شپه و ورځ دے د لیلا
څنګه ن کړے دغم په توره کیږی آرمان نه کا چه حضور وی دَ لیلا
عاشقان چه تل لیلا کا واویلا ځان فنا بقا په نام که د لیلا
غم له پیره غمه غوارهٔ نه ئے مومی آشنا تل په غم کښے خوښ وی د لیلا

---

له پیرا ځت ـ پوره مرتبه ـ

د عشق درد دې واړه وسوځي یکبارګي　　چه خیال دې سرانجام شي د لیلا
راشه زده کړه احمد شاه له مجنونه
له چه مجنون په عشق موصوف دے د لیلا [1]

د یار زلفې پېچان زما　　په مخ دي سیه ماران زما
راغله مخامخ په کوڅه　　کږ ابرو کمان زما
له ښایسته به ئے څه وایم　　آهو سترګے غلطان زما
دا وسلګ بخت زما　　راغله لب خندان زما
زړهٔ به ډیر هوس کړم　　یار دے نن مهمان زما
که دے نوی نوړ بساط　　کړم به قربان جان زما
یار که دے کړم خوښ په سر　　دا دے سر سامان زما
دا دے هسے شکر لبه　　ماته وی د قند دکان زما
ښهٔ ژبان و ښهٔ رفتار　　آخلی تړهٔ عنان زما
ځوره په مخ ښنهٔ خالونه　　زیب که ښنهٔ کلان زما
ځان که آراسته کا نړے　　نه که تاب آسمان زما

وایه تل ثنا احمد ده
یو دے نګهبان زما

نن د تا د سرو لبانو مئے وما را　　لو عزیز یم دا د میولے وما را
صبح و شام دِ په دُعا مره مشغول یم　　دار ما صحبت دستا ذکیر وما را
که سرے وجود دَ مینے په اور سوځی　　خوښ په دایم اور د مینے سوځے وما را
کړې د وړے دِ د دوسترګو میزان دے　　دستا وزن د میزان د ګے وما را

---

[1] دا مصرع د حبیبی په نسخه کښے داسے ده :- " چه مجنون په عشق کښے مرینه د لیلیٰ "

دنیا یُست بازار دے څه عجایب جوړ دے ‌ هیڅ ئے نشته صبوری کالے وما را

که په سروی سرے ته وا خله دلبره ‌ د سروشونډو د خونړو تالے وما را

که وی زهر که خواږه وی ستا له لاسه ‌ که عاشق یم دا د کُوی هم وما را

دا رتا نظر دے تیغ د سر وهلو ‌ سر پرېکړے په دا تیغ یم هم وما را

دا د مینې دریاب څه د پایاب نشي ‌ تو په ووم دریاب دا ډبیوپے وما را

به زیاره دے بل خواست دا احمد کړے

څه په دوړخ نارے وهي چه د وما را

د بورے جل ته دے ولاړ دی توړهتیان ستا ‌ تمامی خولی په حکم دی روان ستا

لکه مست پرانکان د عزو په سر ولاړ دی ‌ په هاتی ولاړ دا هسے تهوتیان ستا

> ستا د سپینې خولې د ښېر علاج څوک کا؛ چه رنجکه مهیا دی زنګیان ستا؛

ستا د خولے بازار عجب ړک له شکر دی ‌ عاشقان ئې د شکر لبو طوطیان ستا

و طوطیانو ورکوی عالم شکرے ‌ دوی را غلی له هوا د هندیان ستا

چه په چاه دے د زنغ آب حیات دی ‌ د عاشقو زندګی په زنخدان ستا

څه عجب دے د خیل حُسن په خم رنګ کړه ‌ په عالم دی بنکاره کړی دا خمیان ستا

د عشق طوق ئے په ګردن د رته ولاړ دی ‌ همیشه د هونارے کړی قمریان ستا

احمد شاه څکه ناره ستا په دربار که

چه نیولے دے د حُسن په فرمان ستا

که په زړه بانده هر څوک وم دوا ‌ بے دید نه به جوړ نشي را ته دا

زما زړه که د لے و مایه دوا کړه ‌ بارے وړے دے دیار مهر وفا

معشوقه په بلندی لکه آسمان شوه ‌ و آسمان ته لاس نه رسی د چا

چه له دسته ناامید هم له پاشي ‌ بل امید ئے پاتے نشي بے له خدا

مینه هیڅ ړے په زړه په وړ نشي ‌ د شها مینه یو ورځ ده زړه له تا

محبت کړے په زړه یا په زور وے — نن به مینه وه حاصله د هرچا

هم یې عشق یو اراده دے که پوهیږې — اِراده یې بیان یو کړه د بقا

دغه عشق لره فنا نشته هیڅ پرے — شي فاني باقي، بقا شي هم فنا

چه فاني شي دا باقي بقا فنا شي — عشق به شي فنا بقا هم بیا بقا

نور بعد د شي دا بقا بے نهایته — تا به هله کاله عشقه بیا جدا

چه له عشق وِجد اکړي زما جانه — دا لیشي معنٰی و تا وته دانا

دغه عشق به له تا نه ځي تل تر تله — له سِواؤ به سوا کړي تا سِوا

چه سوا ته له سواؤ وکړے سوا — معرفت په معرفت به شي رڼا

معرفت څوک دیار سره دا دے — بے له ځانه به یار وینې هم اشنا

په نظر د تا دیار تفاوت نشته — لکه دوه سترګے د چا چه وي بینا

والیٔ غوست بوقلمون قیصر احمد

نه دے رنګ له بله رنګه یکتنها

رائشه رائشه مرحبا — ته له خدایه غوښتے ما

همیشه مے یاده وُلے — اے زما د زړه صفا

آراسته که په دُنیا یُم — زه به یې څو کړم بے له تا

مرګے بنه دے په دُنیا کښې — نه چه څوک شي بے وفا

سر په تیغ پریکړے بنه دے — ستر بے پته په دنیا

چه زه سَر په بور جل کیږم — لور په څه کړے زرا ته وا

چه یې سر په مینه کښېنود — هغه یوړه محبوبا

چه یې مینه یاده وله — تېر تر ځان وُم لا پخوا

اے دلبره زړه به بند کړې — که وُوایې ته زما

چه د زلفو په دام کیوت          دا عاشق ووئ بلا
دا رضا به په رضا که          که ته هم کړې رضا
احمد شاه ته دواړه سرائ
یکار نه دی بې له تا

اوس زړهٔ ستا کوم ثنا          اې ثریا درس شها
لاس په سر در ته ولاړ یم          یار له ما مکړې جدا
ارمان هزار ارمان صنم          ما لا یه هیڅ حالت مکړه سوا
اس د خیال دې په شان دې          په قدم قدم په چشمونو ما
آفتاب چه دِ له مخ رنګ زیړې کا          تر و یه کوم حُسن سې کړې تا
آسمان که مخ نسکور نه کې ولوړه          که نه زه یا ذې شرۀ دستاد قد علیا
آئینه چه له شصت دِ جلوه کا          له حیرته سترګې څو کړې ثریا
ابې مخ زهٔ اوړه رنګ ژړ اکړم          له ړاڅې د سینې نه یېږی لالا
ابیه د مجنون له مخ ولاړ شه          له دنیا چه په ارمان د ته لیلا
آبحیات دِ له زنخ معلومیږی          له غا ښونو صبحدم کوی خندا
آشنائ جانه هغه بللې بویه          چه په غم وخوږ زهیروی د آشنا
آبر د رحمت که سر بیرون کا          چه په داغ زړهٔ د لالا وکه ثړا
انګېرې د سرو زرد توړې خاوړې          چه پرېږدی د شهلا سترګو رڼا
اور مې په زړهٔ بل د تا د عشق کې          آرزو مند نه دیدن یم دلربا
احمد په یار قسم دې بې له یاره
که به خوښ وی په دنیا یا په عقبا

---

له ويسلوړ

بیا نوې نوبهار شه که دوره د لالا — نوبت د ساقي راغې که پیاله سترګې لالا

د بهار ګلونو غږ شه سوران کوي بلبل — نصیب د چمن راغې چه څرګند که نغم لالا

وصال د یار چمن ته هوس د زړه په ګلو — د چا ګوره نصیب شي د رخسار ګل لالا

په هوس د سرو ګلو نو بلبل را شه را شه — چرې توي غماز راشي زړه داغ که د لالا

په نمره د یار سر کښېږده بلبله نن ډېر ارد مې — چرې نه وي بیا ارمان کړه د چمن تازه لالا

ستړ د نغمه عاشق د چه د یار بېلا اخلي — نه چه په غم کړوي په زړه داغ لکه لالا

وصل د یار د روزي کېږي سر قربان شه — سرے ورینې د عشق په نرګه ګل د د لالا

شاه احمد د عشق په وطن نو بنور ما بنور شه
خدائے لکه پېښ اکړ د یار سره سترګې لالا

بهار راغې بیا په مزه د ګلستان ستا — خزان نه شه اوس هوس کړم په بوستان ستا

ستا د باغ ګلونه واړه آراسته دي — زړه بلبل ناري وهي په باغستان ستا

رنګ د داغ مې د عاشق له دله وا خست — ځکه ډېر دے د لاله په لالستان ستا

که تشبیه د نرګس نه وے ستا له سترګو — خیال به چرې که لالا په نرګستان ستا

کشتګان به د آهام واړه ژوندي شي — که باران که د کرم په بهارستان ستا

په خندا مې بلبله ژړا چا کړه — له ګلنار چه خاندي په نارستان ستا

له اندوه د دنیا به فارغ نه شي
مګر شي احمد ګوښه په کوهستان ستا

خدائے په تالیبه مجنون کړم ته مې کړې نه ما لیلا
در ست عالم به پښو د ما پښو د کړم که له زړه کړم دا ویلا
چه مجنون یم ستا په مینه توی به وم د نوکي وینه
تل ستر تله وایم خوښ یم زړه په دا هسې وینا

خوښ وند ے یم په دُنیا کېنې دغه لار به زهٔ پرے نه بدم
خوړے دی دنړکی سترګے ستا په مینه کېنې بینا
ستا د مینې لار له مانه څو چه یم غلطه نه ده
په دا څه شوکه وماته نسبت کړی د نابینا
په خندا به لاس وانخلم همیشه دِ دامنګیر یم
که هر څو راپورے خاندے په مجلس لکه مینا
له ښو ښه ښائی دلبره زهٔ له تا اُمید د ښو کړم
هزار حیف جور و ستم د ے د آشنا په خپل آشنا
د ستا مخ لکه آفتاب دے تیاره نشته ستا له مخه
وَ احمد ته مخ ښکاره کړه چه په نړه ئے شی رڼا
رالښه رالیشه دا معنی څه ده ملا — معنی للفظ کوم لفظ دے لمعنا
یو مرغه سینه په اور لیمبې په ادبه سر په اوره کېنې — له دریز
خور اک ئے د سینے لا رووطن پرے په خپله ها
اور ادبه اوره په خپله ها کېنې منجمد شوه
ها خالی مرغه تر دو اوس په خپل که ثنا
دزه ئے څانګه څنے بیل دی نه نوی شتی — پروازئ په اندلیښنه حکم که په چابلسا
شپېږ مبهو کے یوله بله پېټ لس ئے سترګے
پنځه د شپې پنځه کا ته و ورځ که په غلا
اده ئے ژبے دوه ئے سره د هر سر نوی جدا
شپېږ قرارے اوارمه ئے د خپل صفت ګویا
مرکه عدم تخم معدوم ثمر یها د تسلسل دے — دد مرکے تخم ثمرانه اوره شنه والی جودننا

احمد چه دا بیان که هر طالب به طبع والی
ګرانه نه ده .... ایمان عقیق کانړے نضلا

چه معشوق عاشق ته والی بے حیا — بے حیا دے عاشق نه وی بے ثنا
دا د عشق په رصیقل د عاشق زړه دے — په هیڅ شی به دے نور نشی تا صفا
لیونی به د صحرا ولو رته راشی — که پیرے راشی ستا له مخه یو ضیا
که دستګیرے دا ستا زلفینے نشوے — تل به یم د فقیرے په انزوا
هر یو زړه چه په مژګانو ستا زخمی شو — بے دا ستا له سترګو نه وینی شفا

چه په څه یار راضی کیږی احمد شاه
که په سر وی که په مال زمونږ رضا

دا چه زړه مے پر وسیږی مصطفیٰ — په ثنا دے تل نازیږی مصطفیٰ
چه ثنا کړم د آشنا په همیش ستا کړم — د نخوړ زړه مے پرے رغیږی مصطفیٰ
دا نظر په مونږ و بانے د بنده خدائے وو — چه په نوم دے زړه صافیږی مصطفیٰ
چه درود د خدائے پر تا راغے رسوله — د سکه زړه مے هوسیږی مصطفیٰ
ستا امت نن فخر کا په تا نازیږی — ټول امت به د ر خلاصیږی مصطفیٰ

احمد شاه به بیا هله د زړه هوس کا
ستا لمن ته به لاس رسیږی مصطفیٰ

ته چه ما ته وائے اے دلبره بے وفا — ولے ته نه ګورے د خپل جور و جفا
زړه بے وفا نیم ستا په عشق کښے که یاد کړے — واغوندستا ته لالا زما له وینو سرو پا
وا هره دا زما د زړه و تا ته څرګند دے — پټ چه له تا نه دے زړه نے څه کوم اخفا
ستا د دربار خاورے لوے شرف هسے پوهیږم — هر چه خاکساری کا مشرف شو سرتا پا
ستا له حسن یاره د بل حسن نه سمیږی — کله برابروی دا ذره الو شمس ضیا

ته مهر وفا کړه له بېله تل ترتله

څه کوې دلبره دا احمد سینه وفا

که زه نور یم ستا د کور یم محبوبا — هسې نه چې د پېغور یم محبوبا

نه د اصل لاف کوم نه د خبرو — اور لمبو نے ستا د اور یم محبوبا

که دا ستا نظر پر ما وی تر نمر لوے یم — که نظر کړے هم ړه نور یم محبوبا

که قدم زما په سر ږدې اے دلبره — نو زه خو خاوړې ستا د لور یم محبوبا

چې قدم مے ستا د خیال په خاطر راشي — نو زه خو ستا د خیال انځور یم محبوبا

نو په دا د نور عالمه بېګانه یم — چې د زړه په عشق خمسور یم محبوبا

دا احمد مه غواړه بے وفائي — ے نقش

ستا په مینه سره تور یم محبوبا

ستا له مینې په عالم کښې شور شرا — لږ و ډېر خو د زړه حال وما نه — د ا

چې دے حسن له دنیا تخت عروج کړو — کښېنه زما خته خمیروه په عشق ستا

تور طالع به زما سپین پر دنیا نشي — مګر ستا مینے پرے وکړه تجلا

نور د حسن دې تمام له ځانه بېل کړم — ځکه نور د جهان نه وینم بے تا

چې زړه هسې دا ستا د نور د نتر شو — دغه زړه په زړه خبر کړم لا یخوا

احمد شاه همیشه خوښ دې له خدایه

چې مرآت د زړه دے خدائے کړو محبوبا

زړه زما چې اندېښنے کا — اندېښمن کم اندېښنے کا

د عشق فکر کړنه ږب کړه — غم د هرے اندېښنے کا

که وصال دے که بېلتون دے — زړه په دواړو اندېښنے کا

په دیدن د ده حیرت دے — نا دیدن ئے اندېښنے کا

که خپل یار ورسره یار شي — له رقیبه اندیښنې کا
د بلبله که ګل خپل شي — له ضرره اندیښنې کا
که هر څو معشوق بې غم وي — خوار عاشق ئې اندیښنې کا

چه خپل یار په نظر وینې
احمد څکه اندیښنې کا

زړهٔ هسې رنګ روزګار کا — چه همیشه غم د خپل یار کا
د وصال په هوا پایم — بد بېلتون د زړهٔ ناتار کا
بادشاهي وصال د یار ده — بد هجران دې سرې خوار کا
زړهٔ په مینه خبر نهٔ وُم — اندیښنې چېچل دمار کا
که هر څو په نظر تیز وي — په دود زړهٔ کښې ورکه لار کا
چه دود د مینې زړهٔ کښې راشي — د زړهٔ بلبل څنګ چغار کا

که څو څو آساني احمده
عشق تهمت سرې په دار کا

نن خبرې بیا په ورو کا — چه بیا څه چرې په زړهٔ دکا
له عاشق ئې څه لیدلي — چه پوښتنه د نو مو کا
دا ناتار که نزه کوینه — دا تحقیق چه د کورو کا
په کاته ئې زړهٔ یو هبږم — چه قتل د سرو کا
چه سپېزوان ئې سرې لېنې که — زړهٔ پورې په اورو کا
زړهٔ به څه رنګه خلاصیږي — بند د زلفو په دامو کا
څوك به وٍلې نارې نه کا — زخم ئې د توره ماروپه خولو کا
که عاشق که فریاد ونه — د تهرکوتې په غوږ ډ کا

که ئې غم راته ښکاره شي — پټ ئې ځمزې په تارو کا

که نظر ؤکه احمده

زړهٔ به باغ د ښو ګلو کا

---

لاس و ماته په ورو ورو راوړه طبيبٔ — مهر و کړه حال ئې وګوره حبيب

وسکه زړهٔ زما هرګوره ډېر خوږیږي — له قسمته آشنا نه ديني قريب

دا په حسن ډېره ډېره ښايسته ده — زړهٔ ئې څکه ځله کاندې بې ترتيب

محبوبا که په خوله ډېر کوې دا دونه — ولې هر څوک بخره مومي له نصيب

که هر څو ورته کوم ډېرې زارې — راته وائي مکړه غم ستا يمٔ غريب

چه صبا ورله راشم زما جانه — وائي څوک دې دلته څه که بې اديب

که زهٔ زړهٔ ورځنې پرېکړم نه پرېکېږي — چه دا ډېره ده په اصل کښې نجيب

توري زلفې په سپين مخ باندې خورېږي — په ښائست ده شوخ وشنګ خوش ترکيب[1]

چه دلبر وته خدائ حسن د ګل ورکړ — تر و به ولې چغار نه کا عندليب

د احمد مدام طمع که چغار نه

د اشنا له ملک راځي بيا نصيب

تاولیږ کړې يم له خواب — اې د زړهٔ چنګه او رباب

چه دا هسې ده او ستړی کړم — ستا د زړهٔ کاسه خراب

که نارې وکړې رباب — زړهٔ به شم سينه کباب

چه تا وکړم خراب — ژاړې دوه سترګې سحاب

په آشنا پسې زهير يم — دا د زړهٔ نور ده آفتاب

---

[1] په بل زړه نسخه کښې دا مصرعه "...... خوش ترتيب" ده۔

دَآفتاب پہ خبرےُ مخ دے — پہ ملکانو د جلباب

کہ زړګے ودۂ تہ ټینګ کړم — پہ کاتۂ ئےُ زړۂ بےتاب

دَ دۂ مخ تہ کاتۂ لشی — ښایُستہ دے بے حساب

دا دړ ړونو طاقت چرے — سرتریا دہ عشق جوړآب

همیشہ دہ شوخ وشنګہ — چہ عالم باسی لہ خواب

خلقِ ئےُ کړے خرابے — جوړ دَزړونو دہ قصاب

غافل خوب دبے غمیٔ کړي — جہان درست دغم دریاب

دے پہ اَصل خبرنہ دے — دے خود بین لکہ حباب

دعاشق مینہ لہ یارہ — تل پہ اوښیروی غرقاب

شاہ احمد ستا پہ دیدن کښے
پہ یار خو اوښے سیلاب

من زما دلِ کباب — پہ آشنا لیے خراب

مینے هسے لیونے کړے — سری کار دِلہ رباب

ددیدن طاقت دےُ نشتہ — چہ حاضر وینے ماب

عشق دُعشق پہ میو مست کړے — پیالہ دےُ نہ اِضطراب

بیګانہ لہ کورو کلیہ — پہ صحرا کرزی ناتاب

یوکوکار دِشو پہ ځزہ — مینےُ و لیسیتے لہ خواب

څہ بہ زۂ وتانہ وائیم — د یار مینہ بے حساب

داوصال ئےُ آسان چرے — جدائیٔ دہ لہ عذاب

دُدیدن مستی احمدہ
تیرے کاندے لہ حساب

نن زما سينه کباب — ولې بزغ نګړی رباب
يوه چنلګ و ترانه ده — سينه سوی ده خراب
پهٔ تا سوت باندِ بزغ وکړه — موج وهي د عشق درياب
ما چه عشق ليدلې نه دے — د عشق مينه کړم جلباب
عشق يو نوم دے و يو هېبږ — نوم ئے عشق دے د اسطرلاب
که د ستا باور نه شي — نن ده کړه د مينې له کتاب
که د مينې کتاب زده کړې — ژوند به ورکړے بے حساب
که تر خپل عمره تېر شے — دا به در که مے شراب
هسے ننګه ے به درکه — تل به مست ئے بے خواب
وقت د مرګ چه له راشي — روح به ورکړے بے عذاب
مرګ ژوندون به سره يو شي — که خبر شے له دے باب

مخفي بيګم

احمد شاه تل وينې والي
دا د مينې له آفتاب

ستا خمارو ستر ګو مست کړم بے شراب — ځکه ګرزم مست او تر هسے بے تاب
خپل نصيب مے هسے وو بېل وما ته — خلاص به نشے ته د مينې له ګرداب
د ساقي به خوا قرار کړه له وطنه — څو به سوے سينه ته ګرزے کباب
د دے زړهٔ له حاله څه وايم و چا ته — واوره عزيز دے نزدے و نيسه رباب
يار خلوت کښې ولما سره جوړ شوے — زړهٔ مے ريږدي له رقيب دل خراب
تل چه هسے ته و ځان و ته عزه وے — دا ويو به سر خراب ګرزه حباب
محبوبا مے له ازله ښايسته وه
په ښايست ئے سيالي څو کړي مهتاب

بڼ غ په ورو کوه رباب
دا به ویښه شي له خواب

که دې ویښه کړه له خواب
مرګ به وکه بې حساب

دا دې ړوند دې ده قصاب
محتاج نه دی له جواب

څه سیالي کوي مهتاب
چه لري ښایست نایاب

که جلوه کړي له نقاب
نمر به و باسي له خواب

کلک رکاب نیسي آفتاب
چرې پرې نه وزي له تاب

په ښایست ده انتخاب
هم خوشبویه تر ګلاب

ستا د حسن له کتاب
ګل هم ووت له جواب

عاشق دې سینه کباب
مینه ولیست له شتاب

د رحمت نو په سحاب
د احمد زړه کړه سیراب

بې له اوره دې بیا زړه و سوم رباب
ستا دې وي د غم په اور سینه کباب

بنه اوده بې غمه ومه زړه په خواب
د آشنا غم دې راپا کړه بې حساب

بې له درده مې سینه شوله کباب
خبر مشه څرک د عشق له ډېر عذاب

په هجران مې د رنګ ئمه نا تاب
که خبر شم بیا داو ښیو له دریاب

بې ترتیبه یم دستر څکوله شراب
په حېرت یم که حاضر وینم ماب

د بې تراره زلفو له جلباب
و دانۍ په جهان وینمه خراب

بیا به یې له تل کوز کوي اې آفتاب
د ښها حسن جهان کړې د ګرداب

یاران داو ښیو همیش د حباب
په دریاب داو ښیو تل یم غرقاب

بې له عشقه د مینې له کتاب
بې غم احمد چه ولوست له باب

بره بره رانيشه له څنګه عندليب　　　د قسمت پياله ډکه وڅښه غريب
بې ډيره احوال نه وو ايه ومانه　　　بېلتانه ځمونک له ځان کړم بې نصيب
يار همدام بې ياره مشه خوار وزار دے　　　بې له ياره که پادشاه وي بې ترکيب
که تمام عالم ئے واړه طبيبي کا　　　د عشاقو بې معشوق نه وي طبيب
مړني له مړنيو سره ښه دي　　　مړني که يک تنها وي بې تقريب
زۀ په خپل آشنا ډير خوښ ووم نازيدلم　　　بې پروا ووم د اَيامو له رقيب
خپل نصيب را ته رقيب کړه دارا پيښ　　　ځکه زۀ په خاورو ناست يم بې تکذيب
زما عيب دياړ په وړاندے ټول هنر دے　　　واغيار ته که لقمان يم بې اديب

دا د مينے راز احمد وئيلے نشي
زۀ دے او د جدائي کړم بې ترتيب

ته چه ټول د ګل هوس کړے عندليب　　　د خزان زهر به وڅکے غريب
که ښادي وي په ښادي ليسے بيا غم وي　　　د دنيا کاروبه واړه بې ترتيب
د بهار چمن ته څو به هسے ګورے　　　د خزان په تاوه به پروت وي بې ترکيب
چه وفا ئے همه داشي بې مضمون　　　عندليبه دا دنيا لويه رقيب
اوس به څه له خپله بخته ګله من يم　　　د عشاقو قسمت وادے له نصيب
که هر څو په خوارئ خوار وي بيا ئي که　　　وعاشق وته ديار مينه (قريب)
که همه عمر ايوان شي په دنيا کښے　　　منت بار يمه په مينه له حبيب
که درست عمر بې له ياره په بېلتون دے　　　بيا دې ته ئے نظر نه کا له اديب[1]

بود و سود په دا دنيا نشته احمد
ته له خپله خدايه يار غواړه قريب

---

[1] د ضرورت شعري په وجه د ادب په ځائے اديب ليکلے شوے دے۔

د هرچا ده خپله بخره له نصيب — ستا په بخره ئې ژړا کړه عندليب
مادر زادئې په دا بخره پيدا شوے — که د بخره د وصال وه هم غريب
چه تر سرو خان و مان وياړه تېر شي — نتيجه د کمه مونده له حبيب
چه کندړان د همېشه آه و فرياد دے — د يار غم کړے ولے هسے بے ترتيب
چه طاقت د صبر نه وو ستا په ځان کښې — څه د غبنته د کلونو له ترکيب
مخ د زيړه ژړه د تور سکون نشه په کوګل کښې — په ژړا ژړا خلاص نشوے له رقيب

اے احمده که په خپل زړګي رنځور شوے
د خپل رنځ دوا د غواړه له طبيب

نۀ چه په خپل ځان هسے غره ئے اے حباب — دم تر دمه کوره چه به سم شے له درياب
ته چه په کشش باد د دنيا کئے هسے غره ئے — کوره هم په باد ده د دنيا خانه خراب
هغه کوم چه وه په تا سايه له هره باب — څښکله اوس هک شه که ئے وينے له آفتاب
هر څو که غره ئے په خپل نور شمس و مهتاب — د دومي له دنيا به عاقبت سينه کباب
خپله جدائي ئے ژړه وي له دره باب — دا باران چه وينے تل وريږي له سحاب
ته که شے خبر د جدائي له عذاب — نو به هرګز نه کړے آشنائي له هره باب

وا ورے د احمد وينا که ته له هره باب
رائي شه که ئے کوره خالي نه دے له صواب

په دا آه و غوغا چا کړه عندليب — که غنچے خولے د آشنا کړه عندليب
که د زړه رباب د رواخلے اے غريب — چه دا سوز د زړه رسوا کړه عندليب
د کلونو به د ياد دے چه ژړيږے — او که داغ په زړه لالا کړه عندليب
کوره حال د خپل زړه مه وايه و چا ته — چه د يار مينه رسوا کړه عندليب
د يار داغ په زړه بے ياره نه رغيږي — تر و به څه د زړه ادا کړه عندليب

چه دا هسې په آشنا پسې ملول شوې — که هر څو دې زړه ور واکړې عندلیب

حال د زړه به دا د ورپېژلو احمده
چرې نه چه ځان رسوا کړې عندلیب

اې دلبره په طلب یم ستا د لب — په رښتیا نه به دروغ یم مذنب
زه غریق د خپلو اوښیو په دریاب یم — بیا به دا دریاب کښې ترې لکه کب
عاشقۍ مې زړه له هسې صافي ورکړه — بې صورت، صورت دیار وینم عجب
دا د عشق بازار د سر دې زما جانه — کوره نه دې دا بازار بیا په نسب
بې زحمته راحت نه دې چا موندلې — د مچۍ په دود له ځانه خوره رطب
چه د عشق په ژړنه ورځ شي له ګناره — د حنا په دود به یوسي خپل مطلب

ستا د حسن دا بې ولیده په سترګو
ځکه زه "احمد شاه" ناست یم په ادب

زه به هم ستا شم مرغوب — اې د چا کوڅ پرو محبوب
په خپل ځان به دریغ ونکړم — که خبر شوم په اسلوب
په دیدن چه څوک غالب شي — اندېښنې ئې کړي مغلوب
شپه اوورځ ئې په طلب کښې — طالب غواړي خپل مطلوب

چه مئین شي احمد شاه
څوک قیاس کا زښت له خوب

بې وفا[1] دغه دنیا د غم دریاب ده — په هر لوري موج وهینه بې حاجت
د دنیا مینه ته پرېږده وا عیاره — د عاشق خو یاد دیار د زړه راحت
هر چه سود یار د مینې په لا دیر یکا — د هغو له یاره خود شي د لالت
که د زړه پېژندګلو شوه ستا له یاره — د ظاهر سبق په پرېږدی نهایت

---

[1] معلومیږي چه دا دې غزل پو مېڅ دوه درې شعر د نه ورک دي۔

احمد شاه کته د یار په مرضئ کار کړي
ځان په خلاص کړي ته د نفس له سیاست

ماکته د زړه مرآت — ښکاروم د عشق سموات
عشق لباس له مانه واغست — روح زه کړم د خپل ذات
ماله ځانته معلوم داکړه — د مرآت نه کړم وجات
نه شا شوه دوه مخونه — د زړه دو نظر د خپل مرئات
عشق دا چاړے په ما وکړے — وای د روح نار کړه بیات
نار خوږه وُم چه په ځان سوُم — د نار چاړ په نور ثبات
رنګارنګ خبرے کاندے — نا معلوم کائنات
عشق شهین د پاس راغے — شوم کوتره بیاوهات
احمد بے روح ژوندے شو
دا روح بیل دے که یو ذات

راوړه لاړه اوړه نهاړه زړهٔ د مینے لت — شومه قلندر ورپسے ځم د زړه له مت
نشته مے قرار شومے خپل یا مے ونده نه دے — باد که خبر راکه څو پیوند صورت ختت
ته هغه بوراومه چه تل ډکل په نړاومه — مینے ډیر نخوڼ کړم پر لوتم د نړه له کت
مینه د یار غر سره هیچانه ده تول کړي — دوه که سره تول شی ده د نه د مینے خت
په غم د عاشقے کینے غرونه چاک دړه دړه شو — هغې توبه وشه د مینے له پت
نادان عاشق د مینے هسے اوړے په سر واخست — اوس د مینے نیک بد لے ویاسته له وت
راشه احمد د همت توره زر واخله
کهندے د روح ملک په راشے د نفس له جت

---

له دخاد روقتو پېنږے یعنې وجود۔

په مخ بيا را غله طرټوټ[1] — سهناك لکه عيوټ[2]
که په مخ ده سهمه[4] کړه — په زړه ډيره ده همټوټ[3]
سر د يار په مينه کيږده — تل به خوږ کړنږے ديوټ
دا نارے په عشق نه کړے — يارے مينه ده اکشوټ[5]
پريکليه تر ابده — هم د زړونو ده جاړوټ[6]
چه پنډ ا چرے په زړه شي — نور پر تل کړي حدوټ[7]

مينے هسے پروړ ده کړے
احمد لکه طفل رغوټ[8]

هيڅ خبر نه يم له دله الغياث — هر ګوره له دله بيدل الغياث
که اشنائي وته ګورم نه پوهيږم — ساړه آهونه کاږم له ګوګل الغياث
که مے زړه ستاله ديده ماتے راوړه — د ديدن لښکرے راغل پرليستل الغياث
دا د زړه ملک ئے ونيوه بے جنګه — بيا زور په د زړه رضا کول الغياث
مهرويان که تسم د خوږي څه باور دے — د حسن جلوه ئے او په خلقه ئے وسپکله الغياث

شاه احمد د حسن زور دے چا سهلے
دا دنيا ده عاشق د نارے وهل الغياث

د هجران له لاسه داغ يم الغياث — په افسوس د زړه ..... يم الغياث
په وصال کښے ئے قرين وم د بلبلو — په هجران قرين د زاغ يم الغياث
ښه هوس زما د زړه د يار د مخ وو — بے له يار ه بے نزاغ يم الغياث

---

[1] نازکه او خوږه۔ [2] ماتونکے زمرے۔ [3] سخي۔ نرم۔ [4] پيچپيدا۔ ګرانه۔
[5] ډيره ونکے۔ [6] پيدا کيدل۔ [7] پيټوره ښځه
[8] دا ټکے زموږ په نسخه کښے کرم خورده دے نه ولا ږيږي۔

مخ د یار لکه ډیوه هجران ے شپه ده　　　په دا شپه اوس بے چراغ یم الغیاث
اوس د هجر تر دماغه پورے رائے　　　په سامان کښې بے دماغ یم الغیاث
زړهٔ زما لکه بورا په زړهٔ تیږي　　　تل د ګلو په سراغ یم الغیاث

احمد شاه زهار حال نه کړي پوښتنه
په زړهٔ داغ لاله د راغ یم الغیاث

شپه او ورځ مے زاړي دا ده الغیاث　　　چه مے حُب له زړهٔ مه باسه الغیاث
همیشه په خپل دلبر پسے اوتریم　　　په دامن د یار مے لاس کړه الغیاث
یار چه نه وینم وحشی د بیابان یم　　　آرزومند ئے د دیدار یم الغیاث
خپل دلبر مے کوند بیا زړهٔ په آرام کړي　　　ورځ لرګے د اور په دار یم الغیاث
ستا د مینے بهار بیا که د غوړیږي　　　اوس بلبل غوندے په دار یم الغیاث
بلبلان همیش په ګل د غنچه ښکار که　　　ګل په لاس که د اغیار شي الغیاث

اے احمد یار وی یا یار دیار وی
چه نه یار نه ده یار وی الغیاث

راشراشه یو ځلے وثاث　　　اے د ورځ کمیاه غیاث[1]
زما زړه د مستئ وړے　　　چه ئے تل دے دار ثاث[2]
هسے راښئے په خوب کښے　　　هغه خوب وینی اضغاث[3]
په تلاش ئے د تعبیر یم　　　سترګے له خوب استجاث[4]

احمد شاه قدم ناخله
څو به ته کړنے لهاث[5]

---

[1] فریاد آورید ونکے۔　[2] بد حال۔　[3] پریشان۔　[4] پارسوب
[5] مګړے۔

زما دله په دیدن دیار محتاج — دیار مینې و لیستې له احتیاج
کوم عاشق دې چه رواج د دنیا کاندې — چه ستا مینه سري باسي له رواج
عشق لیواوه دې له دلبره پیدا کیږي — هسې نه چه پیدا کیږي له مزاج
کوم کاروان دې چه به بې خراجه درومي — پر د عشق کاروان دې د درومي بې خراج
د آشنا سترګې دې بازه دې دراج دې — مخامخ له بازه کله شي دراج

احمد شاه چه خپل یار ته ځان تسلیم کړ
غم به نه کړي د دنیا له تخت و تاج

دا د زلفو له تاراج — آخلي سر و مال په باج
څو به وکړې ته فکرونه — مکر وکړي له رواج
که ته سر و مال پرې کیږدې — دا په هیڅ نه ده محتاج
تعلق د زلفو هسې — مېن هیڅ نه شي اخراج
په کم رود ځنې خلاصیږي — د عشق لاړي سمه کاج
مینې چرې په لاس ورنړي — که سل حجه کړي حاج
نه په زر و نه په زور شي — پادشاهان باسي تاج
چه د حسن قافلې ځي — څه پروا ئې له خراج
حسن رنګ په رنګ جلوه کا — تل خرید کوي له ناج[1]

احمد شاه حیران یم
عشق نه کړم بې احتیاج

د بیلتانه بده تاراج — چه نارې دي بې رواج
ته شوې کنه هیر بوټي — موافقت نه کړې له مزاج

---

[1] په قلمي نسخه کښې دا مصرع داسې ده:- سپین چوړا کړې له عاج۔

دوصل بوی دے نښته  تل په جدایۍ محتاج
د زړهٔ سوے دے په چاښتے  خلقه باسی له رواج
لوړ په لوړی عشق ولی  زړه په خلاصۍ وی باج
د چا لاس درنه رسیږی  څه رنګ خلاصی له اخراج
میین زړه د نه سره بیل کړی  هیڅ د رحم نکړی احتیاج
سخت ستا غمونه  چه سارهٔ نشی له علاج

احمد به وکړه خبراتونه
که خلاص وای ستا له تاراج

زړهٔ مے په دیرېږی ستاله زلفوله تاراج  هیڅ رنګ امین نه دے ستا د زلفو له تاراج
تلم په لویه غرم تو ماتیږی چه خلاص شم  ستر کے مے چشمے شوے ستا د زلفو له تاراج
که زړا دره کوم او بلل کندے باران دے  شوم خبر ښه پاده ستا د زلفو له تاراج
پر ښهر عاشقانو وطن کندے چه به خلاص شی  پوه شوم خلاصه به نشی ستا د زلفو له تاراج
ته خو هیڅ پروا ره نه لیسے زما ذ لیره  خلق که فریاد که ستا له زلفو له تاراج

حیلی احمد هله به زړهٔ له زړهٔ بیغم
لری که دے ویره ستاله زلفوله تاراج

د هغو چه نه قرار نه ، نه آرام په شپه او ورځ
نه دے وی له خپله یاره بنهٔ کلام په شپه او ورځ
زړهٔ به شی زرے زرے لکه شیشه د غم په عزت
یا به مرشی که دے نه وی دلبجام په شپه او ورځ
شپه او ورځ په هیله ستا دی که زکوړی اے دلبره
د عاشق عمر تیریږی څه نا کام په شپه او ورځ

که دې خال په زړګي داغ کړم، تا نه یاد کړم اې صنمه
د غه ستا نخښه ګڼړمه، ستا پیغام په شپه او ورځ
ګرزیږم له تا آشنایه جوړ به مثل د زړه کفر
هغه څوک دی چې به کفر کړي مقام په شپه او ورځ
د احمد بادشاه زړګې به هم په دا سره خوښیږي
چې د خیل دلدار صفت کا تمام په شپه او ورځ

که مې خلاص کړه د رقیب له بده ږغ — چې بد درد دې دی بهتر تر بده لچ
د غماز لولې په تا ده اې دلبره! — کښېنه دې په اصل سپک د لا تر یچ
دا اغیار دې بیا په ځان سره زرپوه شي — که په خولې دې کړه د غم دلاس خنځ
د ستا غم په مثل غوځ په مخه مړاځې — څو به ځان زغورم د استا د غم له غوځ
د عاشق صورت به ونې نه هې نه وي — چې ستا غم دې په صورت شو لکه رېچ
د عشق اور دې په سر کښېوت نه پوهېږم — که بیلتون دې د خاطر ریښه کړه وېچ

که د احمد بادشاه دیار په در قبول شي
څه پروا که د رقیب له دې لا لچ

خدایه دې ورکړه د نا ستو د غولي پچ — چې هیڅ خلل به پاتې نه وي ستا له پچ
په هر زخم چې ستا مقام شي — تل په غم به ګرفتار وي ستا له رېچ
درست جهان په تا مردار دی او خراب دې — له ارمان لا دوه لاس من دې له ږغ
اې غافله دا دې خوښه مکړه — د ابینا سترګې دې خلاصې کړه له لچ
نه بندا دې خدایه د غواړه بل مه غواړه — بې له خدایه ژوندون کم ګڼړه تر پیچ
یو یقین او یل باور در سره واخله — د ګمان تیاره به سینه کړې له ګنج
کینی او عاجزي د تا کمال ده — د نفس تند خوي مه آخله له مرچ

هغه ځیل اصل په ته هله بیا مومې ... چه د کبر کرزن د باسې له خرڅ

احمد شاه د همت توره درواخله
نفس شیطان هند وي د وباسه له کچ

طاقت نشته د هیڅ یا د عشق له ځنځ ... عشق اوری د اور که پوری بې لا لیڅ
عشق یو اور دی د کهي تیز که قرار شي ... زړه ژړ اکه د فکر وله ډېره هیڅ
اور د عشق مینه د یار په یا لب بشي ... د دنیا غم د کهیږي لکه مرچ
چه هنر د خاصیت دې ستا په ځای کیني ... ځکه خوري د هر سړي د هند تند مرچ
چه مین لیسې سر ستړی په ژړا کې ... مګر ته خبر نه وې عشق له پیڅ
اې مینه د ډېر ځان په احتیاط شي ... تر هغې لکه غرڅه له خپله پرچ

احمد جوړ ته بېرد مینې د دیوالګه
اوس یې ځئ هماره وم د زړه له کچ

ته اوس دوایه ارواح ... معنی له زړه را غله ارواح
ته زما په لویه لوی یې ... وې پېژنه ارواح
چه ته زوو هله غه وی ... والی خود ځان ته ارواح
چه له علمه تجویز کړې ... د تجویز معنی را غله ارواح
معنی معنی له علم ... اظهار د جمال وکړه ارواح
که ته ځان وته وکړې ... درا تلو لار په بیا موارواح
په هوا د نفس بندي شوې ... معنی پاتې شوه ارواح
پرداده عرش د پاسه ... د طن و غواړه ارواح
عرش له عرشه یګانه دې ... ملکوت پرېږده ارواح
د بقا د او بو کهل ده ... هویت کوره ارواح

عرش کہ دوہ پہ معنیٰ یَو دے　　　لکہ روح ارواح هسے ارواح

احمد شاہ د بنتہ مرغہ دے
والیٔ ستا پہ خولہ ارواح

دہ د عشق د بنار فتوح　　　بنہ ړاغلے تۂ زما روح
زما ستا سرہ وعدہ وہ　　　چہ دا نفس بہ کړو مذبوح
نفس پہ میان زمونږ رقیب دے　　　نصیحت شی لہ نصوح
اختیار د نن پکار دے　　　دے اختیار ہ وی مجروح
کہ اختیار دِ پہ میان راغے　　　پردۂ لاړ لشی مفتوح
پہ معنی بہ سرہ یو شو　　　معنی زما دا ستا لہ روح
کړے اصل پہ لاس راغے　　　اصل بہ وصل شی مشروح

شاہ احمد کہ د اصل خبر واخلے
د اتیارہ بہ شی صبوح

زړۂ دردمن پہ هغہ د ردچہ لہ صباح　　　ځکہ دے پہ او بنو غرق دے شړی واح
هر سړے لہ خپلہ ځانہ صلاح کاندے　　　بے عاشقہ چہ لہ جانہ کا صلاح
د آشنا لہ غمہ سترګے مے روړ دونہ　　　بیابے سترګو لوړ څوک یم ملاح
د ا صورت لکہ قفس زړہ مے طوطی شو　　　خلاص بہ نہ شو څو نہ وی د عشق جناح
د یقین پړیوہ د عشق بہ لاړ پیدا کړہ　　　پہ تورتم کښے د ا یقین د زړۂ فلاح

نور عالم کہ نور مدامہ د جنت کا
احمد شاہ دے د خپل یار د کو ملاح

کوړہ بیار اغلہ پہ مخ　　　هغہ مستہ شاہ کل رخ
دهاتی پہ شان دړنہ ځی　　　بے پروا دہ لہ کلوخ

لہ لوټہ۔ غونډہ۔

که سلام ورته څوك وكا — سروهي لکه سپين وږخ
که د ګل په څېر ئې څير کړم — ښنا يُست د برلړي ګلخ
عاشقان چې ئې ثنا که — دا ثنا ګڼي پېړے سڅخ[۲]
ګهې پټ ګهې ښکاره شي — معرفت لـه يوه رخ
دا په کبر کبر درومي — عاشق نه وينی ملخ
د شها په دربار باندے — هے هے زړهٔ وزی له تخ

قناعت "احمده" تل کړه
هرچې درغله په مخ

ديقين په غشي ولـه د ګمان ګوخ — د ګمان موخ وي په هر دانا منسوخ
څو دِ لاس وئي نهاده ده صرفه مکړه — دا د نفس رقيب ئې وباسه له ټوخ
که تفس رقيب له ميان ووت — د طوطا شکر به خوړے د يار له رخ
هر دانا د بل دانا خبرے پند کا — په نادان وي د دانا ګفته سڅوخ
کله نمر د معرفت دے راختلے — د خفاش په دود به شپه ګرزي شبخ
که باطن دِ خپل صفا کړے زما جانه — د معنی ګوهر به بيل کړے له کلخ
تکبر دے له شيطانه مه ئې نغوړه — چې په کبر به سر وچ کړے لکه لوخ

شاه احمده ته رښتيا خبرے مکړه
چې رښتيا په هر چا ګڼي رڅوخ

پټ تورقم په رڼا درومم ستا دَ مخ — جهان زيب کا چې د چارے دا ګلرخ

---

له د سر سخي پوستکے چې د بوسونه پرک کړي او لګے غوا ته ئې د پچي په ځائے وړاندے کړي۔ ۲ له سخت۔ ناګوار۔ ۳ له لخښه۔ لښانه۔ ۴ له ستغ۔ سخت۔
۵ له آورميدل۔ ۶ له سخت۔ قتلغ۔

دا دَ حُسن جذبې هسې په ځان یوړم ‌‌ ‌ چه بې یاره تورنه ویتم دَ چارېخ
دزړهٔ گل یارۀ په لاس دړلړه راغلم ‌ ‌ چرې نهٔ وی چه دښمن کا پرتاسېخ
خپل نظر کړه چرې تیاس کړې آدلبره ‌ ‌ وشهبازته کوره څه وی خوارملخ
نسیم بویٔ دلونګین دماته راوړه ‌ ‌ دغه هسې بویٔ دچادې په زړهٔ سخ
که هر څو خپل ځان ژغوره نهٔ ترغورېږی ‌ ‌ بې له تا به څوك رقیب کاله ماچخ

احمد شاهٔ ورځ هغه لخدایه غواړه
چه رقیب مُدعی ویاسی له مخ

شهسواره له سمند ‌ ‌ عجب راغله سپین مرونډ
ده زیرکه خود پسنده ‌ ‌ هم له عقله دا لشمند
دا په خپل حسن غره ده ‌ ‌ هم له ځانه خود پسند
مخامخ دغه ده راغله ‌ ‌ دچا خون ته آرزو مند
دَاختیار په میدان کاندی ‌ ‌ جنګ په ورو ځیوله دردمند
چه سېزوان ئې سره لښې کا ‌ ‌ زړهٔ سبزی لکه سپند
تورې زلفې په مخ راتګی ‌ ‌ څوك به خلاص شی له کمند
بدرنګ ده چه مخ پټ کا ‌ ‌ له ډیر حسنه څٔ شرمند
له غاڼله پېلو نسی! ‌ ‌ ده غنچه زیبا سمند
صنوبر به لا خجل کا ‌ ‌ چه بنکاره کا قد بلند
خوږې ګفتارې ئې زهرونه څېرکه ‌ ‌ خوږې ئې ډکه ده له قند

که د خولې داد پرې وکړې
«احمد شاه» کړې سربلند

ژن زړهٔ ګرفتار د محمدٌ ‌ ‌ ګرفتار په رخسار د محمدٌ

زړه بلبل غندې وېړي      چه یادې شي ګلزار د محمدؐ
شمس سجده کړه له محتابه      چه یاد که وقار د محمدؐ
سپین جهان ئې وینوه له فلك      ښایسته شیرین ګفتار د محمدؐ
سروه لاړ و لاړه له خجلت      چه وریادشی ښه رفتار د محمدؐ
دین بهار په زیبه ګلونه      تل تازه وای دا بهار د محمدؐ
چه ملائك به ته اوس حمد وائي      بې د خدائ له عشقه و بل د محمد زګار
شاه احمد ئې تر شیرین نامه جاریږي
چه بې خدائې تعالی نه و ویل کار د محمدؐ

خسته زړونه آلوده دي محمدؐ      نظر و کړه چه پوده دي محمدؐ
په نظر دتا چه خاورې سره زر کیږي      نظر کړه زړونه زده دي محمدؐ
که د انفس و شیطان ډیر کړي جنګونه      ستا آغلي[1] را سره دي محمدؐ
زړه له نفس و له شیطان نه ویریږم      ستا نمونه مې کړه دي محمدؐ
د ښمنان دي کیو تلي په دوزخ کښې      تر قیامته شرمنده دي محمدؐ
د ایاران د تا ګلونه د بهار دي      هم په خیل علم پوره دي محمدؐ
عالم واړه ستا له نوره پیدا شوي      ځنې زر ځنې جیوه دي محمدؐ
د احمد لاس په ډېر سخته ورځ ونسه
او ښې وینې مې سره دي محمدؐ

د بلبلو په ځای هیڅ مه وای زاغان ګرځي      په بوستان د ګلو تل وای د ایاران ګرځي
ګل چه بې دیاره مخه لیده کیږي      جوړ د ستر ګو نظر دي په خار ستا ګرځي
ګلستان د یار له مخه سره زیب کا      بې له یاره مګرې زړه په ګلستان ګرځي

[1] ښایسته۔

غنه اوره چه د کرم او به يې نه وي — غنه اوړه مکړه په مخ د دې آسمان کښې

تار د زلفو چه يې پر يوزي په مخ باندې — بې له سره يکښې نه ويښم تاوان کښې

چه د مخ خال يې پرې ورانيږي — په مخ د يې نښي داوښيو تل باران کښې

د يار مخ دې لکه ګل خزان پرې مکړه — د غه ګل دې تل تازه وي په بوستان کښې

د خزان باد چه هر کله ګل پريشان کا — کاشکې دا ياد کړې سرې په نارستان کښې

احمد شاه د بېلتانه غمونو سوې
يو وار پياله کړې په ګوليو د ياران کښې

خوښ په مينه يم ترخه د يار لذينه — ما خو مينه ده ځکليه ستالذينه

عاشقي که ده په بخره د رندانو — په رندي که وړې ماده پيالذين

که پياله د زهرو وي هم د شکرو — زه د زهرو پياله اخلم د الذين

که ترخه پياله ښه نوائې د شرابو — چا به څه کړه د ساقي مينالذينه

چه د ګلو بوئ لري رنګ يې د ميو — ساقي راکړه هسې جام وما لذين

ته هم غوږ په ترانه کړه اې مطربه — ښه په ما لګي د قاصد الذين

د غه نفس په ديتنګ په خبر پرې کيږ دم — عشق که او ردې تر ګلزار په مالذين

که د مينې په اور کې شوم بار پرې څه شو — چه په ما تر ژوندان مرګ دې لالذين

که ژوند په آشنا باندې فنا کيږي — دا فنا په ما تر دا بقالذين

آشنائې او غم سره دي له ازله
شاه احمده د يار غم په مالذين

د دلبرو خبرې مکړې اذ عاذ — خبرې د زړو تو اهتذاذ

په نرۍ نرۍ خبرې مکوره — نرې خبرې جوړې التغاذ

له جاري ساتل۔

هر چې په حال شریک نه وي اغیار دي — له اغیارو هر هښیار که اتقیا ذ

څو دې لاس توان وي مه کړه پرېږده — د اغیارو خبرې د زړونو انجذاذ[١]

د اغیار صحبت ګڼړه د مار خونه — که دانا یې له دې خونې کړه انتیا ذ

د مار خونه په که له تشویش — له دې هسې ویرې زړه به یې انقاذ[٢]

چې د دانا خبرې پند که هغه دا ناوي — که یې پند که دې به موي استیلاذ[٣]

روحاني تلقین درلره بویه — تلقین به دې بې خود که له احناذ[٤]

## څو روحاني نشئه اصل مه غواړه
## شاه احمده په نفس غواړه له رب استحواذ[٥]

شو کرم د کردګار — بیا یې نوې کړه بهار

کل جهان په آراسته کا — پرې بلبل به کا چیغار

بربېر رالیشه مینه — ته وګوره لاله زار

چمن ښېله آرائي کا — پرې بلبل وهي کوکار

باغوان ښېله باغواني کا — عاشق بند دې په رخسار

هغه باد په یار را مشه — چې یې زلفې کا تار تار

د خزان باد د بسته شي — چې بلبل به شي پرې خوار

جدائي سخته بلا ده — چې بې یاره وي بیمار

د بلبل خو ګل پکار دې — ژوندې یاره څه پکار

د غه شمع چې خندا کا — پتنګ وله ناقرار

---

١ ټکړې ټکړې کیدل — ٢ آزادي - خلاصې

٣ ستیزه حرکت — ٤ په شرابو کښې اوبه ګډول

٥ غلبه - فتح

چه ترسره تېر وي د عشق لاف هم هغه کړه — تېر هغه دے په زړه تېرې خوږلي دي

د مژګانو خدنګ ئې هسې تېره دي — پوره ئې راپوره د مئين تر زړه ختلي دي

چه د عشق په وطن راشي ډوبه وينې — پرمشه د شهيدانو چارچاپېره کلي دي

چه دوبين د غم ئې تور دے لاړے نشته — خپل رښتيني ئې خپل انګړو بللي دي

که شپه ئې پلوله مخ که بيا ره ته — باک ئې نشته پټ و يارته ئې خندلي دي

د عشق لاف د هغه کړه د عاشقانو — بې اختياره ئې چه د غه نيلي تيزلي دي

احمد بيا په زړه کښې هوسيږي

ګنږه يار د زړه په مهرورته کتلي دي

[1] آسونه تړلول-

يو کار که د نيم تور نيم تياره دے — هسې لوړ دے چه هغه سپين ئې سکاره دے

په هواځي دے پلي ئې په نامه د سواره دي — هسې اوړے ئې ترخولے خيژي چه دن اوړے ترتيا دے

يو هسې نور ستره وو دوست — بے وسره دے په وساره دے

بل دا هسې فرزند وزيږوو — چه دے په اسم پلار دوراره دے

يو شين لوګے پيدا شو — نمر پټ ښکاره اوره دے

د اور و حجاب ئې واخست — آسمان پټ ښکاره تروږه دے

احمد د نس بند ونه تهنګ کړه

ځکه ياد په رنګ د غره دے

[1] وزير-

ما چه کوت مخ د شهي تر اوربل لاندے — لکه لمر چه پراوره رالښئي د باسندے

نږدم که يو ځله کړه بيرون له بره — په ليدو ئې درست جهان پرمئين کاندے

زيب د نږمخه دے دلبره ستا له مخه — هر يو زړه مستي د ستا په ميو کاندے

ماهر حسن ستا له حسنه مرو قياس کړه — چرے اوچ لرګے او چرے لښتے تاندے

لکه برګ د بيد زړه ريږدي د عشاقو — ستا په مخ چه ووينې زلفې لړزاندے



چې ئې پټ هوس وو ستا په زړۀ کښې کړے　　　اوس دا ونيوے وئے په مخ بهانه ئے

اے احمده که دیار مینه خوږه ده

د جفا خوراک ئې تېرے کاندے تر سپا نه ئے

زړۀ مې هسې په خپل شان که ځان کاندے　　　چه قسمت به څه راپیش که دوړا ندے

دباور زړۀ ئې ناګاه راځنې یوسه　　　بيا ولاړه په قهقهه دیار ته خاندے

دعاشق دزړګی ولی ئې راد کښنی　　　ولے بيالري مخ پټ تر پلو لاندے

له هيچا نه هيڅ پرواه ئې په چا نشی　　　وژلی زړونه په مثال د لښتے تاندے

لکه مخ يار ته ښکاره که بيائې پټ که　　　څه اوږ ونه بلوی په زړونو باندے

که ښکاره که مخ ويار ته يار ئې ګوری　　　په کاته ئې بيا د زړۀ پاڼړے لړزاندے

واحمد وته له زړۀ ولے نۀ ګورے

چه په زړۀ ئې بيا درد ميچن ورغاندے

چه داشان په لاله زار ځے　　　در پوهيږم په آزار ځے

بيا د حُسن آراسته کړۀ!　　　د ښکاری په دود په ښکار ځے

دوه د زلفې په مخ دام کړے　　　له عاشق بيا کنار ځے

دادی واړه ستا پندونه　　　په تل کچه لکه مار ځے

دوے دے سترګے قصابی کا　　　د سروتو په بازار ځے

دواړه درومې دلېندے کړے　　　بيا د زړونو په تاتار ځے

ده وهر چا ته معلومه　　　خوی مجنون په زړۀ هسبيا ځے

ستا دعقل کے نشسته　　　که دَ عقل په مدار ځے

"احمد" راشه توکل کړه

که رښتيا په لور ديار ځے

عجب خوبنه پر خمار ځې | تل دې روڼړو په بانړار ځې
ته و چاوته هم ګوره | که تل هسې کج رفتار ځې
ته په خپله رضا درومه | له عاشقه په کنار ځې
هیڅ ته نه کړې پښتنه | همیشه زلفې تارتار ځې
د غمه ګړ دِ یوه نه ده | ګوره کجه لکه مار ځې
یاره هیڅ دې نه پوهیږم | چه داولې په آزار ځې
په عاشق به مهر وُکړې | که همیش به په ناتار ځې

د احمد زهکے دِ یودړ
بیا دوړیو په کنار ځې

په زړګی چه ناترار ځې | په هوا د مینې یار ځې
دَ آشنا لوړې دِ کوم دے | چه دا هسې تیزرفتار ځې
دا مقام دے دېپټ خولیو | دا ته ولې په ګفتار ځې
جوړ آشنا دے ډیر یادیږی | چه دا هسې په کوکار ځې
سیر به وا خلے له سیره | که دا خپل سر ته په دار ځې
که دا خپل سر ته په دار کړې | مست دَ دینو په بازار ځې
خپلو وینو مے به نوش کړې | مست د سترګو په خمار ځې
ته دے سر کړه شها خپله | که له عشق پردا لار ځې
دلیل پرېږده یقین کړه | څو په دا نقش د معمار ځې
دبے رنګه رنګ ګوره | که دَ وحدت ته په جمار ځې
که یقین در ثمنه ورک ته شو | همیشه به د معنو په لاله زار ځې
بلبل د دیه ګل وے | وسکه اوس ته په چیغار ځې

د معنیٔ معنیٔ به واخلې — که معنو څخه کنار ځې
مشک به را دړې عشق واخله — که د ختن آهوګړو په ښکار ځې

رقیب به له ډیره غمه ومري
اې احمد شاه که په لاس زلفې د یار ځې

ویړي له مخه ستا لاله په لالستان کښې — عجب نه دی که ستا دمخ په ګلستان کښې
ستا دمخ په څیر به نه وي چه نظر کړم — ښایسته ګل به وا نه ړې په بوستان کښې
ستا د شونډو وله رطبه هسې خوند دے — چه دا خوند لشي مونده په نخلستان کښې
زړه مې هسې بندیوان شو نه پوهیږم — په خلاصي مې ستا دمخ په زنګستان کښې
هسې شان دې ستا د ناسته اے دلبره — لکه ناسته د شهباز په کوهستان کښې
له رخساره دې په سر غاښو نه خاندې — دا رهات سینه مې چاک په ناړستان کښې
سرو ستا د قد له برکت شان بیا مونده — ځکه سرې تیر وي همیشه په باغستان کښې
د شهلا سترګو را بخه د شهلا واخست — ځکه فخر که شهلا په نرګستان کښې
سره لبانو دې دُر پټ کړه نه پوهیږم — لکه پټه که صدف دُر په بحرستان کښې
د وصال آرزو مې ولیستم له خلق — تش ککوکل نارې وهم په نیستان کښې

احمد شاه که غواړې اوریدا خله
داوربل سهی وی لو په شلستان کښې

ګوره بیا په سره ګلذار کښې — لاله رنګ په سپین رخسار کښې
لونګین مې تل په غاړه — بلبل مست که په چیغار کښې
هوسیږم ور ته ګورم — خزان سوی په تاتار کښې
د وصال نوبت مې دا دے — نن د ګلو په بهار کښې
یار مې ګل او ګلبدن دے — ډیر زینت مې په رفتار کښې

غمزه که په ملا خو ښېږي — تل د ترکو په باړ ار کېښې
عزي مه غنده څليږي — زلفې مښکې دي په تا تار کېښې
ښهماران زلفې په غاړه — سرې تل د غونډ په غار کېښې
رنګارنګ ګلونه پېړدي — د بلبل عشق په ګلنار کېښې
تا چه حسن د ګل واخست — زړه به څه وي په قرار کېښې
څه علاج څه طاقت وي — چه شهاشي په سينګار کېښې
هميشه روز ګار داوي — مېئن زړه نيسي په ښکار کېښې
لنډې وروځې باڼه غشي — عاشق ولي په کنار کېښې

نارې مکړه احمد شاه
د روغ خوی لښته بيمار کېښې

ستا په رنګ به بل يو نه وي په جهان کېښې — پلو وا خله يار به مړ شي په ارمان کېښې
هميشه سوې سينه د ر لېږې کړه څم — چه ستا څائې نه دې په نه که په آسمان کېښې
قلندر يا به ملنګ په جهان ګرځم — يا به اوښي تو يه ووم په خپل ګريوان کېښې
د سحر باد خوش نسيم خبر راوړه — د زړه ګل دې خندا نه که په بوستان کېښې
چه نارې کړم يا ترا رم مراد مې داوي — زړه بلبل دې ستا د مخ په ګلستان کېښې
ستا د حسن له تاراجه زړه تړاکه — چه بلبلې هم تړاکه په خزان کېښې
په جهان به زړه خلاص وي له تاراجه — زړونه سوزي عجب اور دې په ېېزوان کېښې
ته د خلقو ملامت به په ځان نه ږدې — په نارو عاشق ولاړ په د ا ميدان کېښې

هيڅ به جور او په جفا به لاس وانخلم
زه احمد که چېرې جور ووم په سانا کېښې

د زړه وينې راغلې په ليمو کېښې — د صورت خوښه دې وليږي په غمو کېښې

پُه دے ویر خله هیله ستا دَدیدن کا — دَدیدن طاقت دے لښته په لیمو کښے

همیشه چه یار دا یاد کړمه په ژړه کښے — بیا دژړهٔ آهونه کا دم په سانده کښے

دآهونو شمار یه څنګه او تر څو کړم — چه په هر نفس دے ساه خیژی آهو کښے

هجران او درد دے ټکیدلے غلطے دِ نهٔ که — میئن نژړونه به وُسوړی په لیمو کښے

جدائی مثال دا ور سهلاے نهٔ شم — جدائی لکه میغرنه ځی په ژړه کښے

په شمال دِ جدائی به راضی نهٔ شم — په دے خوښ یم که وصال وی په اوږو کښے

په وصال دیار به غر لکه جوړ پیږی — هغه ژړهٔ چه بیلتون دا په چرو کښے

دهجران نوم چرے ما خله احمده
له هجرانه ریزه ریزه یم په هډو کښے

بیا ته وله نهٔ شرمیږے — آشنا ګوری نهٔ پوهیږے

دیقین په لاره دروړے — په ګمان وله دریږے

دوغه دریاب ماهی ئے — په یقین که دپو هیږے

دګمان صورت که واخلے — تهٔ دریاب په موج بهیږے

کهٔ اِخلاص چرے دنکړے — ستر ایده به نو لیږے

شك فانی یقین باقی کړه — په باقی به هوسیږے

دغه خیل یار په دوینے — دیقین په نور کهٔ هنیږے

عمر تن دے که تلاش کړے — په تلاش به تهٔ بینا دیږے

داد نفس غروره بدشو — ربه ته کهٔ ورحمیږے

ژړهٔ یه خلاص کړے "احمدشاهٔ"
کهٔ دَرد په خولهٔ وسیږے

دلبره ته چه ابرو کمان لرے — دَلیندۍ په دود به دے تل کښان لرے

غالې دانه کړې زلفې د امو نه    حاجت د دام نشته چه سوړ پیزوان لرې
زړۀ که مرغۀ شي هم خلاص نۀ شي    چه انسونیه ژبه د کل جهان لرې
دا بادشاهي نۀ ده لوړه ده چا نه    چه د تورو وروځو عاشقان لرې
چه ترنبۀ نۀ وي همیش خوا ږه وي    ته د غه هسې خوا ږه لبان لرې
حیف دے دلبره دستا له شان دے    یاد سوړ په ویښو ته لا کمان لرې
سړیۀ عوخ نۀ دے عاشق ژوندے دے    د شفق په دود که لب خندان لرې

احمد زوړ نۀ دے تل ځوان دے
که ته په د سینے په سینه ځوان لرې

راغلۀ شاه په مخه سوړ پیزوان زلفې تار تار ے
سرۀ سرۀ دے لبان وه تورے سترګے ناعه دا رے
شوبه کړم زړۀ کړی ستا د قدم ترچوګان لاندے
سرزې ما که کوے دے خیل چوګان لرے دلدارے
همیش دی د عاشق د زړۀ لښکرے ځنے ماتے
ستا لکه چا پیرے ترهسار زلفے فوز دارے
هر څوک که شبګیر کا ستا د لبو غلا به څوک کړی
تا چه په سپین مخ زلفے لښکرے کړے تیارے
حسن دِ که اوږه دے ترو ولے دارنګ سرول کړه
دارنګ دا وړسول وی همیشه د پیزوان چارے
تا د تورو سترګو نخچیر دا هسے بدرید کړه
راغلے بیار خوم د زړۀ وینے لارے لارے
زړۀ مے د تندرو په دود ستا په منګل دړکۀ

ستا د شهبازې سترګې ولې نه شوې لا قرارې

هیڅ رې نه پوهیږم په کوم مې کښې دا اسرار دد

ته چې دواړه سترګې همیشه لرې خُمارې

ستا حسن ادب ځماو زړهٔ دا هسې را کړ

زهٔ احمد په خوله خاموش په زړهٔ د هم کوکارې

داد غم تیرې چړې — قتل د زړو په خون لړې

په لیدو دې ځما جانه — د چا سترګې دي مړې

په د سید کله دي مړې — د کتو لاړې ستړې

په دیدن دِ مړې نه شوې — عاشق وُږې سترګې وُږې

دا د زړهٔ د شوي د پیاره — سرهٔ پیروان دې لَنبې کړې

چه عاشق دِ په اور وُسو — بیا تا څهٔ غصې خوړې

دا په اور سوي راضي ده — کا د یار سترګې سړې

میں زړهٔ ستر کله تیرکړې — ستا کیلې نه شوې زړې

ته میں میں لرې — بیا په مینه دې چړې

ته قسمت په عاشق وائې — ولې ځان نه دې ویلړې

دا عاشق به ولې نه مري — رقیب په خوله دې شړې

عاشق وږې د دیدن وي — قربنه ویل دې کړې نمړې

په دیدن دې بېخبر وي — تود مینې لمبې وهي شړې

د ائینې لره دې بولي — بیا وي څه غوارې سترګې

احمد شاه به سر پردې کړې — که شړې

لاړ د مینې کهٔ ستړې — که سړې

یار خبرے دالاڅه په ښه به راوړے — که غنچے د سوسن ښه به په خوله راوړے

داشیرین گفتار د یار هسے اثر دے — بے اختیاره او بنے زړه په لیمه راوړے

زما د زړه لکه بلبل هسے پرے وسه — چه نافے نسیم سحر په ساړه راوړے

تاوده مینے د یار هسے زور دے — گویا غوښے دے د زړه په چاړه راوړے

چه د مینے لښکر راغے هسے پوه شوم — بیلتانه د نیزو څوکے په زړه راوړے

زړه به بیا لکه د گل هسے تازه شی — که وصال د غنچے سحر په تیاره راوړے

د خزان چمن به بیا سره گلزار شی — که د عشق او بهار د زړه په واله راوړے

احمد شاه به هله خلاص له اندیښنو شی

که یې لیکه د خپل رقیب په خپله راوړے

میږه ول ته لوړ په لوړ کړے — بے ستاله مینے به په ما څه تور کړے

که به تور د مینے لیسے زړه تور یم — بے د غمه تور زبانے زور کړے

حیف دے دلبره ستاله شانه — چه په عاشق له ځان دا هسے تور کړے

چه د واړه زلفے دې باد ور کړے — گور د عاشق به په غمکی خوار کړے

که یو وار وخاندے په سرو لبانو — خلاص د عاشق به له غمه کور کړے

یو وار د مینے نظر که وکړے — خسته عاشق به بیا ته دلور کړے

احمد به بیا هله هوسیږے

چه رقیب مے تور لکه سکور کړے

که کرم په ما د سرو لبو شربت کړے — ما به خلاص ته د ساقی نه ډیر منت کړے

که د سرو لبو شربت د یار راکړه — په خپل لاس به رقیب مړه په دا غیرت کړے

چه په سر سره سودا شی پاتے څه شی — په سودا د سر عاشق له ملامت کړے

چه په خپله خپل انگړله بالا شی — بیا به وَلے یار په سر باندے منت کړه

نه لیست ژوندون د خوار عاشق په څنګ د معشوق وي — بې دم ژوند ډیرے حرام که غیبت کړے
که په مینه وړنه دو اسے زمانے — د عاشق به په دغه استراحت کړے

خلائق که ډیر هوس وکه جنت ته
واحمد که ورکړے خو ایر به جنت کړے

چه تل د بیانه د جنګ کړے — د عاشق زړه به ملنګ کړے
توربانږه چه دِ هندنګ دی — بیا به وینو به ئې رنګ کړے
آفتاب به دِ سجود که — که ښکاره څهره کلرنګ کړے
چه پروائے له فلکه — چه ورنزدے محږ دِ څنګ کړے
فلك به سر کوږی که — چه همائے د خیل کرنګ کړے
څوك به څه تاوان د سر کړی — چه د قرب د غره پلنګ کړے
هسے به رقیب سپے کړے — که یو ګل د عاشق ننګ کړے
سیم وزر دی هغه خاورې — چه د نظر به رنګ ئې رنګ کړے

لږ نظر په احمد بو یه
چه ئې خلاص د لسو جنګ کړے

چه دِ بیا زلفے تار تار کړے — میئن زړونه به بیمار کړے
دا دِ پند دے چه لیده ئې شي — تاودے زلفے بنامار کړے
داږه زړونه به تناء حیل کړے — په ښتیا که ځان سینګار کړے
پرے بلبل به تنګ ګویا کړے — که ښکاره د مخ ګلزار کړے
هیڅ کم نه دے ستاله شانه — که خسته زړونه بیدار کړے
په خندا به جهان ګل کړے — که په یار تازه بهار کړے
غم اندوه به له زړه واخلے — که یو ځله غم نګار کړے



کهٔ دِ مِینه په عاشق کړه — دعمان ګوری به نا تار کړے

که پلرلٔه مخه وا خلې — په بنمایښت به نمر اقرار کړے

احمدٔ شپه او ورځ زاری کړه

کهٔ مینٔ په ما دلدار کړے

---

# مُتفرّقات

اے زما دل چیغار کړم — زړهٔ په مخ باندے حصار کړم
زهٔ به دا لفظ تکرار کړم — لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ ط
له نور څخه زما توبه ده — د حق مینه زما سره ده
دغه مینه کلیمه ده — لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ ط
اے زما دل حضوره — غیر یاسه له صدوره
چه ته ووینے پُر نوره — لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ ط
همیشه غواړه مطلوب — څو به ګرزے بے اسلوب
داویناکړه له قلوب — لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ ط
معشوقه ترتا چو پیره — ولے ته ګرزے بے پیره
یقین واخله ګمان زیره — لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ ط
له ناسوته ته راووزه — وخپل اصل ته جار ووزه
هم په داوینا سره ووزه — لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ ط
ته پوهیږم اصل کوم دے — بے یاره عمر زقوم دے
دا ویبي دِ تنعّم دے — لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ ط
چه ته نه وے هله څوے — د خالق په امر زوے
وسکه دا اے دړته ووے — لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ ط

ته به خو چرته غافله — د حق یاد کړه پتل تتل
دا معنی کړه ته حاصل — لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ ط
خبر نه یې له چو هکله — زړه چویا لکه بلبله
لکه زړه هیسے واصله — لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ ط
هغه ونه مونږ لیدله — په کړته کښې میوه کړله
د چا خپله چار وو له — لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ ط
که حاصل یې معنی کړے — ځان جهان واړه فنا کړے
هم د زړه ستر کے بینا کړے — لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ ط
دا خودی خپله حجاب ده — لکه کړے چه حباب ده
د حباب هستی له آب ده — لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ ط
د دنیا فانی خبرے — بیا یې جوړے دی سندرے
مکره دا نصیحت زرے — لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ ط
زما داو پنا غونږ باسه — زړه له کل غیرو جار باسه
په زړه فکر کړه بے قیاسه — لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ ط
که کړته کړے له آسانه — آخر دا به شي ویرانه
همیشه وایه عیانه — لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ ط
اے زما دل حیرانه — چه به ځے خیرے کړیوانه
په خوله داوایه یکسانه — لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ ط
مدد غواړه له سبحانه — هم مدام وایه یکسانه
ترسنه داده له جهانه — لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ ط
دا د عشق په لارے دروه — یقین بازوی کمان بوه

له دیه لفظ معنی موم — لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ط

دا دعشق ډیرے شبرے — چرے نشی له نړهٔ لرے

وسکه نړه ے ډیره پیرے — لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ط

که دا خان اموخته کړے — ته به نړهٔ بله ډیوه کړے

هم دا ذکر سره کړے — لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ط

لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ — لا فانی باقی اللّٰهُ ط

دَ الله معنی اللّٰهُ — لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ط

هیسے نړهٔ والی له نیرو — دے ناظر نړهٔ منظور

مدام دا کهنړه حضور — لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ط

حضوری ے لا خامی ده — نړهٔ په نړهٔ کوره دوئی ده

نهٔ نړهٔ یو کړه سربازی ده — لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ط

تاسے وا روئ مؤمنانو — په دُعا مو ښاد کړئ یارانو

دا وینا کړئ عاشقانو — لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ط

خوش خرام اوسه احمده
د حضرت ښهٔ مرتبه ده
هم په خولهٔ دِ کلیمه ده
لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ط

---

# مُناجات بدرګاهِ قاضیِ الحاجات

زهٔ زاری کوم الٰه — شرمنده یم پر ګناه
نااُمید ستا له رحمته — تللے نهٔ دے له درګاه
د ستا فضل کرم ډیر دے — له عمل یم روسیاه
په عمل مے باور نشته — کلیمه به کړم پناه
چه و خپل عمل ته ګورم — وایم کشکی وای ګیاه
نفس شیطان راسره مل دی — نشي یو کار عند الله
که تلاش کړم نه خلاصیږم — د شیطان له بده چاه
که د زړهٔ سا تنه وشي — سترګے خړنګ شي نِګاه

تهٔ یاری غواړه احمده
له بنهٔ خدایه نهٔ له جاه

نن دِ وخت دے ګوره ته نشتے بیراه — ګڼړه دا چه درځُ د عمر ده بیګاه
کمینی شکستګی د کمال دے — خود بیني او پرائي ګڼړه تباه
نیک خویٔ چه د سړی حسن کمال دٔ — ولے تهٔ د ابد خویٔ کوے اَبلاه[۱]
چه په خپل عمر غره وی نا خبره — یوه دمځ اجل ګډ نړیکه ناګاه
لاس به مږی سود به نه وینی هیڅکله — قافلے د عمر تللی دی کوتاه
له کتلی څهٔ به یو نسی عقباته — نااُمید یا برهنه ځی مخ سیاه

---

۱ کم عقل۔

چه دا هسې روانه ده دې د عمر
ولې نه وائې اے احمده اِلّا الله

---

آلف اِسم دالله دے | دهمه نه پوهنې آگاه دے
الف اسم که ئې ګورې | ذات ئې خود په خپل ګواه دے
اسم صفت عیان شه | لکه اړواح د روح پناه دے
صفات له ذات کوښې په دا رنګ | لکه جلوه درې نی لمرې خرګاه دے
رونړا له رونړا څخه بیلیږی | دسکه جلوه د لمر پناه دے
احدیت بیجده تیره تیاره وو | نن د معرفت صبحګاه دے
په اراده کښې طلب کړم | ما ته زده علم څرګنګ سهیا دے
په قدرت یو بیله جوړ کړم | بیا په ختم مقصود الله دے

چه دا هسې ځائے راغلم
احمد ځکه په سیر الا الله دے

ب باور کړم | عشق لکه نمر کړم
نه ما خبره د عدم وو | د وجود په نور ئې نور کړم
دوا حدیت په تیاره راغلم | معرفت ئې سپین سحر کړم
چه هیڅ نه وو هاله څه وو | هغه عشق اوس هم آخر کړم
مالا عشق لیدلے نه دے | ولے عشق په ځان خبر کړم
نه ما د عشق نسبت نه وو | ګنړه له ځان په جوهر کړم
نن جسم جوهر عرض یم | صباح لمر یم چه ترک لشکر کړم

احمده لہ بقا بہ باقی نہ شم
مګر فانی دا شیرین سر کړم

ت توبہ کړم لہ خودئ    چہ آخر دی پہ د لیسئ
کہ دنوړ عمل ے نشتہ    و خپل خدائ تہ کړہ زاری
یو دِ لوئ سفر پہ مخہ    چہ وُنہ کاږے ټنګ ستئ
ت توحید نۂ ژ دہ کړہ    چہ بے توحیدہ وی خواری
کہ پہ خپل اصل پوہ شے    هم دغہ دی ستا بنادئ
د آخرت تو بنہ پکاړہ    لہ دُنیا ځئ فانی مسافرئ

احمده بے لہ عشق هنر مکړه
چہ عشق سر دے د بنا دئ

بت تال دژ لفوتار کړه    لہ غیرو ځان کنار کړه
ژړهٔ ښژ بنتہ خوئ کړه    نفس شیطان پہ یقین خوار کړه
صورت نیست کړہ پہ هستئ کښے    هستی لہ ځانہ تار پہ تار کړه
کړه دیار مینہ پہ زړهٔ ډیره    مینہ بے یار استغنار کړه
پہ هستئ بہ زړهٔ پہ زړهٔ سوا کړه    هستی د زړهٔ پہ زړهٔ مهار کړه
خبر بہ شے لہ محبتہ    زړهٔ بلبل د سپین رخسار کړه
محبت یو سواد دے!    جستجو دَ اصل لار کړه
لہ دے اصل دِ اصل بیا مونډ    پہ اصل و زړهٔ کو کار کړه
لہ اصل چہ خبر شوے    خبرے د بلبل پہ منقار کړه

پہ یارئ کښے خطر ډیر دے
اے احمده ځان هُښیار کړه

ث ثبوت دغه دے — چه د حق یاد ے راسره دے
وسکه یاد ے جلوه کړی — له لیسنتی نړۀ په تاره دے
یقین چه په راوړ — یاد د بقا په مرتبه دے
خپل سر به فانی کړه — حضور عین راسره دے
حضور د طالب تجربه — هویت مقام کره دے
ن سیل په هاهوت کړه — هویت وتلے تر بشره دے
که د یار مقام بلند دے
احمدؔ په کلیمه تاته ښکاره دے

ج جوئ د وحدت بحیرې — نه ښکاره دی نه ؤ چیرې
لکه پته هسے ښکاره دے — ماے نه تر ده پت ښکاره بهیرې
وسکه نړۀ ے راته وویل — صینه بوئ په دماغ رالګیږی
ماته څه و ئیل له دے پایه — چیرے ربه وته تهرسیږی
وحدت د ځان واحد شۀ — احدیت دریاب بهیږی
احدیت توړ دریاب شۀ — وسکه سپین نور رابیلیږی
دالنور به سپین نه شی — چیرے بیارته په دغه دریاب کښیږی
د تویے ونه کلیمه ده
احمد ځکه په خبیږی

چ چپ مشه له دینه — په چپ لاړ عمر ضایع شینه
پیروی ته دَدین دکړه — چه ستا لاس به ونسینه
دُنیا تیره بے وفا ده — کم نادان به زړۀ ترینه
غم د آخرت کړه — آخر یاتے داخود بینه

دلنس نغوته پریږده — نغوته اوره عمل سیکهینه
چه دلنس په نغوته کښېنوت — شیطان به زړه یې په غابنو چیچینه
چه د دوی په خوله عمل که — ځای به جوړ کړه له سجینه
روح نړه له بنده خلاص کړه — د دین چارې به کړې متینه
چه په نغوته د ملک که — هره چاره به شي مهینه

روح بندی له بنده خلاص
احمد اصلی وطن لره ځینه

خ څه وفا په دا سړي — څه شو خلق چه ستا وو دسري
بیلتون واړه تار په تار کړه — اوس د خاوره جوړ شو کوړي
د ګل په هیڅرې د د محزونه — زیړ کړه د خزان پاڼې نړیوي
دا دُنیا د حباب په دود کړه ده — په کوټه د حباب څه نړه تړي
شیرین عمر که یار د چا بېلیږي — په بیلتون څرنګ تیره شي مړي
چه دا هسې بې لښتنې ږوارې دي — کشکې مه دلې پیدا په دا نړۍ
د دُنیا قدرم ولیدو په ستر کو — له اطلسه برابره ځي شړي

په دُنیا د آخرت کته احمد شاه
خوار شو چه په عمل یې نه وه کړي دړې

ح حق حاضر دے — ته منظور یې دے ناظر دے
چه دا هسې ده حضور کا — ولې نړه دې ناخبر دے
چه یې ستا خپې ړازلې — اوس ولې دې و تلې له خاطره دے
اوس بې غم بې هوده ګرزې — وسکه زړه د کاؤ خنر دے
د کامل طلب ته د کړه — چه د کاملانو اشعار نوړ دے

احمده پریږده نصیحتونه
دهرچا خپل عقل کا زړه دے

خ خولې بوېيه — اے د آدم زوییه
ته زما خبره واوره — ږوځ به درښئي څه لویه
بله آسره د نشته — نتیجه د رسول بویه
د رسول په لار ے درومه — نفس غلیم دے یزید خویه
په عبث چار ے خونښیږے — خوبس دے کمهو بلا لویه
شیطان لوئے دشمن دے — ولے د نفس بیا ترغویه
یو قاضی بل مفتی شی — یوکه اودس بل کوزه تویه
ته هملئے دلوی کرښنک ئے — کوره نښئے د ناسوت سځه

اے احمده دیار په ویلو لوړے
ګردن باریک ګنزه ترهویه

دَ د التّه شها ګوره — که خبره د زړهٔ له کوره
د تا زړهٔ عرش الله دے — که د زړهٔ لخته دے نه ده توره
نَحْنُ اَقْرَبُ اِلَیْهِ — و خپل اصل وَته ګوره
چه نوسه هله څهٔ وے — ځان نابود کنزه اے وروره
که د ځان په نابودئ شے — شها به وو یئے سر توره
یو عجب د هر سیپنے مخه — د زړهٔ سترګے کاږه لوره
خوځان ته دهری نه کړے — و به نه وینے د سترګو توره
د هر مطلق عنوا ہے — پریږده د صبر کاسه نسکوره
پر دغه سترګے به ووینے — چه ځان دهری کړے د ناسوت کوره

ستا نظر به کا تهٔ نور که لیز ته ځان و ته وګوره
داحمد روح دهري دهري ږاغے
دهري به ځي د هر وطنه کوره

ډیره ډیره ش اهره اے مطلوبه طالب غواړه
که مطلب د حاصل نه که په نیمګړي عمل مه دیاړه
بے له خدایه طلب مکړه تل د خدائے په طلب یاره
غم د آخرت کړه آخر پاتے دا د یجاړه
نغوته د نفس پرېږده چه خلاصه دِ وی غاړه
هغه ورځ اسباب نن کړه چه په حلق دِ چلیږی لاړه
نه چه نصیحت وائے احمده
ولے دُنیا تا نهٔ کړه لتاړه

ذ ذاکر ذکر خفی کړه په دغه ذکر سرثانی کړه
چه دِ اسم هم مسمیٰ شی تر فکر انتهائی کړه
له فکره تیریدهٔ دی اِلاَّ الله ذکر ثانی کړه
جرے ذکر جرے ذکر واړه مِینه حقانی کړه
لاَ اِلهَ اِلاَّ اللهُ وا خله اِلاَّ الله د زړه روحانی کړه
چه حضور دِ شی په بجره بیا خپل سرے قربانی کړه
د دوبین لوړے سیاه دے دوحدت جان نشانی کړه
وحدت هم یو صفت دے له لاهوت خوشحالی کړه
لاهوت هاهوت بے ادراکه
له هوُ هوُ هانی کړه

احمده که دا مقام روزي شي

تل باقي بقا د حقاني کړه

ژر به بیارته ګوره — د ګمان کاسه نسکوره

د یقین توره دروا خله — نس رقیب باسه له کوره

کړه یې و باسه له کوره — کور به خلاص وینې له شوره

کړه له ځانه خبر نه یې — لږ و ځان وته و ګوره

که له زړه سره آشنا شې — محبت ناصح به آوړې لوړ د لوره

محبت د زړه آیینه کړه — پیاله زنګه یې ته ژغوره

محبت ګڼړه صیقل دې — کړه د زړه تخته په نوره

له ځان و ځان ته ګوره — که تخته د زړه دې نه ده توره

که تخته د زړه صیقل کړې — ځان به ګورې وینې ښها وروره

ته هماې د لوې ګرځې — شه سوې د ځان له لوره

ځان په ځان سوې دې — که ګمان باسې له زړوره

ګمان یقین واخله — تعلق ښه نه یې زړه بلی موره

تعلق له دله واخله احمده

په تعلق زړه سوزې بې اوره

زه رویت روښانه — لکه نمر له آسمانه

رویت مې هغه وینې — چه سر بیل که له ځانه

چه له مرګه مخکې مړ شي — شاه هغه وینې عیانه

مړه لره محو کیږي دي — محو په محو شي له شانه

محبت یې غلبه که — صفت دا ره له رحمانه

حق وینی حق وائی        حق جو یه له سبحانه
دیقین په ښا وراشی        حق باطل بیل که ګمانه
خپل اصل ورښکاره شي        آخر توبه وکه له ځانه
له خپل ځان شرمیږي        هم له کړداره وي پښیمانه
په کسب وپه طاعت نه ده        دعشق غزوي ناګهانه

د احمد په حق دعا کوئ یارانو
چه خدائے امان وکه له نیرانه

زړه ب واخله له دل        زړه به خلاص کړے تل د تله
له خلط به ته خلاص کړے        د صحبت روح به کړے حاصله
دنفس نخوته نځو نه        نغته پرېږده اے غافله
د حباب په دود غره وے        عمر د تیر کړه بے حاصله
په خپل آصل خبر شه        دے وتړنے د زړه بلبله
که زړه په اصل ګویا کړے        د حیات اوبه صافے کړه له ګله

احمده د اصل ونه به غوړه کړے
اصل میوه نه که لوله

زه زلف پریشان        خدائے دِ راوله ژړا جان
پر مخ بانده کږیږي        له عاشق بے ګمان
جلال جمال سرګند یږي        ځکه زړه کاندے لړزان
پر سپین مخ خوله د پاس        عجیب نتّ لري ګران
دوه دی په پیو د لي        پردانه افلاک عیان
که لعل ورسره نوی        دربه چالیده مکان

وسکه زړهٔ مې وېښېږي ... غنه پټ مینه شوه راښیان
ما به څه وئیل له حال ... زړهٔ صورت فاني حال نمایان
له ظاهر وې باطن دی ... له باطن ظاهر کویان
عاشق ذوق تماشا کړه ... د غافل خونه ویران

احمد خوښ په پاشاهئ ئې
او که عشق دړی له جهان

ش ژاړي ناره کوي پړوه ... مینٔ وئیستې له کوره
دمینې سرګران دے ... زړهٔ وُباسي له زوره
که سرنا د راحله کړے ... مقصود به بیا مومي ناورو
ناسوت وجود بے معنی دے ... ملکوت دمینې کړه انځوره
جبروت جلوه د زړهٔ نور که ... ولاهوت نور بے حد ستر کے توره
په لاهوت غلط مشه ... پر مقام دهو غواړه سر توره
دهاهوت جلوه کړه ... پر واهوت د معرفت ونمره کوره
احدیت بیحده توددریاب دے ... د وحدت جوئ روان لا دی توره
معرفت سحر نمر ختلی ... غافل خفاش په ستر کے کوره

په دا ستر کے به ئے نهٔ وینی احمده
د دین ستر کے معنی به که نوره

ش سر دایم ... د شهئ په جمال پایم
وسکه ځان له مانه ورک شه ... لکه ذره د نمر په مخ پیدا یم
لکه چه راغلے وم بیا لاړم ... د جمال په نور جلا یم
شها نمر د معرفت شه ... وای له وحدت هویدا یم

مطلب ئې معرفت وو — نور ئې بړغ وکړو چه دایمٔ
په خپل جمال مې تهيت کړو — بیا وطن لړو به ئې بیا ئیم
اَحدیت سره مخ یٔم — وحدت د خپل جمال نزایمٔ
له وحدت جلوه کړم — د ناسوت په ملك وایمٔ
عاشق خبر نه دې — تل د محبت په ښر به ستایمٔ

احمد که سرفانی که
نه به بړغ وکړم چه هایمٔ

ښن شراب د وصل نوش کړه — ته مړ دې نفس خر کوش کړه
که له زړهٔ محبت کړې — ته زما خبره گوش کړه
د یقین په لاره د رومه — فانی واړه فراموش کړه
فانی د تا صورت شه — ته د عمر جرس گوش کړه
په گمان ئې سرگردان دې — له معرفته ئې جام نوش کړه
له کامل تلقین واخله — په ذکر تلقین ځان مدهوش کړه
د آشنایئې لوړې صحیح کړه — خپل سرئې دیگ جوش کړه
که بلا نور دې باند وکړه — گوره په صبر زړهٔ خموش کړه
که یار زهر په لاس د رکړو — له محبت ئې نوش کړه
د نفس پند ونه ویردی — ته غیرت باندې سرپوش کړه
د عشق لاره سر بازی ده — ته له هوشه ځان بیهوش کړه
که له هوشه شې بې هوشه — تل له هوشه ته سرو ش کړه

چه یار په بخت راغی احمده
له هر سه پیاله نوش کړه

بن ښهمار زلفے کنار که　　　بے رنګه زړه بیمار که
ښ وندون په دَ زړه څه وی　　　په چند نرغاړه ښهمار که
زړهٔ چه تل نارے که　　　ګناره نه وار په وار که
یو جلال یو جمال دے　　　عجیب دغه سینګار که
د زړهٔ پټ په پردو وو　　　جمال دغه په نور اظهار که
زړهٔ پټ ور ښکاره نه وو　　　اوس په نور سره ګفتار که
که زړهٔ ویده وو ګمان ولیش　　　نن خرید دَ روح په بازار که
روح هاله د زړهٔ بادشاه وو　　　جمال د حیات پینځے په تار که
د جمال یاران ورینږی　　　د روح ملک ئے مرغزار که
یو د جمال آفتاب ځلیږی　　　ځکه روح سیر په دا لار که
اوس دَ روح سره آشنا شه　　　ګوندے سم ستا امانت بار که

زړهٔ احمد چه ډیر ډیر ژاړم
که مے لائق د خپل دید ار که

ځَ صورت کړه بے غروره　　　زړهٔ به مومے اے رنځوره
پیرو دَ نبیٔ او سه　　　کړه د کبر شمله کوره
دے د خدائے تعٰ حبیب دے　　　چه عالم ئے دے له نوره
ځلور لارے کوښے نه دی　　　لکه ثمر د خپل پردو انځوره
طریقت یار یکه لاره　　　حذر بویه له زه نیوره
که په سالک باندے راشی　　　دا څو مقام پوره
ځلور تږے ګوښے نه دی　　　نه په رفتار دے ځبله دوره
مقامات ئے بیل وایهٔ شی　　　که سالک خبر شی له دستوره

جبروت لره چه راشی | کُل جهان بو یه پرلوره
د بقا یقائے څوره | دوړه ته ژوندون له تبوره
دلاهوت لا منزل دے | د نور سرطب عواړه له لحوره
دهاهوت الف ته واخله | چه وُنه ویئے دهو جنت جوره
دهوهو دریاب له موجه | اراده قدرت دعلم توره
هو جامع دے بے پایانه | لابیان څه وایُم له صدوره
هر سالك په مقام راپُشی | تفحص د مقام نه که بے شعوره
هر چا یو مقام وطن کړه | دائے داوه زما منظوره
دائے واړه نا پوهی ده | تیریږه ده هو مقام سروره
هر مقام حضور کښینه | نه یو هیږم له حضوره نامنظوره
که زما خبر دِ باور نشی | ستا حضور دے ته ضرب وکه موره
په تش خیال وائے خدائی وینم | عجیب له خدائے بے شعوره
خدائی دهری په جسم لیدُ نشی | بے پریکړی سره دے مقدوره
چه تر خپلے کلے تیر شے | مرګ محوی څنزه دحوره
نور به حیات په دُنیا نه وی | څشو که بیا ته کړنزے له ضروره

احمده هر چا خپله مینه حضور کړه
حضور سپریږه ده کړه حضوره

ضمن ضوا دے ! | لکه جمال هسے جلال دے
که مخفی ظلمات دے | او خنداے آب حیات دے
له یوه ځمه دوه مخه | څه عجیب ئے کمال دے
ذات له ذات به څه وایم | چه دننه کوم مجال دے

چې په زړه کښې مې داحال دے — که تر خوله ئې باسم قال دے
پټ به وایه نه شي — ذات په ذات آګاه دے
له وحدته را چلیږي — وحدت یو لوړې دریاب دے
د وحدت آفتاب ختلے — ولے خپل صورت پناه دے
که ځان حجاب نه واے — یو بې مثله صبحګاه دے

احمده نور خو یو جمال دے
چې تل د زلفو په پناه دے

ط طیران کړم — د عشق په ملک جولان کړم
آشنا که نه پوهیږي — خپل جمال به ورعیان کړم
پوهه مې ما واړه ناپوهي ده — ناپوهي ده زه پوهه که بیان کړم
که زه ماله عشقه واړه — تر و د ملامت غشي نشان کړم
له وحدته را بیرون شوم — په ناسوت به بنکاره ځان کړم
که سالک په مینه راغے — خبر به ئې په خپل سر و سامان کړم
که دې له خپله خویه وُوزي — روح به ئې عرش زړه به ئې آسمان کړم
له چمانه به مجبور شي — چې یقین ئې نګهبان کړم

احمده چې د زړه په اخلاص دے
زه به ئې هم د جمال د باغ باغبان کړم

ظ ظهور کړه! — جهان واړه نور کړه
جهان واړه نور دے — صورت له میانه د دور کړه
صورت که ستا حجاب دے — بار ے زړه لکه منصور کړه
که خودي واخلې له میانه — بیخودي خود حضور کړه

یو جمال دے سر کند یری ته په خپل نظر منظور کړه
ستا نړیکے خالی دے د جمال په لوړے پور کړه
نړه خو د جمال دے غیر همان له نړه دور کړه
جهان صافه صفائی ده ته صیقل سینه صفا کړه
کړه سینه له نړ نګه صافه په تالاش د زړه چور چور کړه

احمد د فکر اندیښنو یو وړه
که دِ یکار دے پلوله نخه دور کړه

ع عین عیانه د صورت کوته له میانه
نَحْنُ اَقْرَبُ اِلَیْهِ نن ے بیا مونږ له قرآنه
شاه مِنْ حَبْلِ الْوَرِیْدِ هم له مکان لا مکانه
له وحدته را بیرون شوه د زړه کوته کړو ودانه
نن ستا په خوله کلام که د کلام معنی انسانه
چه انسان نه وو هاله څه وو اوس هم هستی عیانه
د انسان په کیل ے زړه وو نن د انسان په ثر به کویانه
د انسان نور ایمان شه اے د ایمان نور انسانه
که ے خپل نور نه وے ما به څه پیژندے سبحانه

د احمد ادوام طوطی راغے له کومه
چه بے یاره څه نه وینی یکسانه

غ غیر پرېښه ده وحق چارو ته اړ هیښه ده
لکه غیر هله نه وو اوس هم هغه وطن لیږه
د دنیا چارے فانی دی دحق په لاړے پښے ږده

که د شاه په کېل دِ نه پرېږدے — کله پرې کړه ډلې يې کېږده
نفس ډېر کوي پېنډ ونه — ته د غېرت عزيز کښېږده
نه پرېږده د خودو چارو ترې — ته په نه پرېږده کښېنې د عشق نهال کښېږده
د دُنيا ترکه که دِ نسي — بار يې غيره مينه پرېږده

عيب که د چاوو يې احمده
کړه ځان په خبر پرکل مالېږده

ت فارغي کړه ! — ترک وجود په راستي کړه
که دِ ځان لطلکه دُپوست — د وحدت په ملک بنيادي کړه
ګمان توره تيارۀ ده — ته د يقين پرې رڼائي کړه
يقين د نه پرې شناخت دے — هم باور په جاني کړه
د غفلت په تيارۀ بند يې — له اغليه ځانې وطني کړه

غير اندېښنې د سره دي
احمده ترک اندېښنې هم دوئي کړه

ق قهار شهاکوره — نن را غلے ده سر توره
يو د عشق مينے په غاړه — لوے هلاک بيائي له موره
په عشق هسې ليونے شي — بيګانه حئ له خپله کوره
خواب خوراک يې په ځان شي — هم يې وچې شونډې کونه توره
يو ارخت په بله آوري — خر خم يې چا نه ده اوروره
جهان واړه که طور طور — تل يې خوے له ښو راښوره
د عاشق په شرا خاندي — بے پروا له خپله زوره
که نزاري د ديدن وکه — والي په پرېکړې سرے کوره

احمده په تیره اختیار ئے غواړه
په اختیار د هر مشکل خونه نسکوره

ک کاف کمینه — دکمین بخره سنګینه
ستا بخره لویه — کمینی له تابیا ئینه
خود بینی شیطان کړه — مړ ئے تور شوله جبینه
په لوئیئ پوره نه ده — په کمینئ کچه کتړ له نګینه
د کبر کاسه نسکوره — توبه د کبر له آستینه
د شیطان خوئ کبر — مه کړه اوړدے له کینه

احمده بے له یاره
غیر داړه غیر دینه

ل لا ځان نفی کړه — اثبات هله په راستی کړه
هستی یوه نیستی ده — ته ئ د غه نیستی هستی کړه
ته له مثل ئے بے مثله — اسم بے مثله جاری کړه
بے مثله به ئے وُوینے — ته په سر و مال خواری کړه
که مطلب غواړے طالبه — د کامل دامن ګیری کړه

چه خدا تم ئے لوئے کړے احمده
تل د خدائے دستګیری کړه

م مهر په یار کړه — ځان عاشق د سپین خیسا کړه
که د صورت بند ئے په مخه — د عشق په اوړئ تار په تار کړه
د غفلت توره تیاره ده — د ایمان په نور کار کړه
که د ایمان په نورانی شوے — نور د وحدت په کړنګو نو ښکاکړه

دتا زړهٔ تل میخانه دے — ته زړهٔ مست له خمار کړه
که ذرهٔ له زړهٔ غواړے — ارواح په روح بیدار کړه

احمده که یار غواړے
د نفس پند ونه خوار کړه

ن نور د محمدؐ دے حلیه لے — په کلی جهان دے غوړیدلے
دعدم یو توره شپه وه — دے لکه نمر پرے راختلے
جهان واړه یے له نوره — هُنر نه دے لا پیدا ندے
د شیطان په نغوته د ړومی — دوئ د سر عقل خوړلے
دلیقین بانده شپه ده — په گمان یے ایمان بائلودلے
نوره چه جوړه په دریاب کښے — دریاب خپل موج وهلے
که بهیږی تر آبده — موج خپل دریاب نیولے
تجلے رنګ په رنګ شی — چه له دریاب نه دے وتلے
نور یو کل دے — دے د وحدت په ملک کړلے
په خپله یے زرغون کړه — پیاله آفته یے ساتلے

د نور صفت چار دلا
احمده له محبته څروئلے

ن نون ولے بیا — صورت د نون وو پخوا
نون نور اول وو — د صورت تکی له نونه کړم جدا
په مثال کښے هغه نوریم — څه شو که غوړند کے شو ترملا
نون په لیس و یه دوو — د صورت الیس نور کړه وینا
له امر ارواح راغے — په بوستان د نور که تماشا



عالم له نوره پیدا شوے ــــ دا قدرت دا ګړه له خدا

زه احمد له نوره پوه شوم

اوس ثنا کړم ربّنا

ق وحدت یګانه ــــ یګانه له مثل بیګانه

صفات د لعل شعاع ــــ لعل شعاع یو ځا نه

دوګانه په ذات نه دے ــــ دا ځے خوځے خود یګا نه

صفات د ذات خویونه ــــ معرفت ئے نه ګمانه

بیرون له دهره ــــ تسلسل زمانه

زنځے نوم زمانه ــــ صباح له دهره یګا نه

دهر برقرار دے ــــ تصور ئے زمانه

زمانه مدت نوم له شئ ــــ شئ فانی نور بے نام نشانه

مدت په شئے پورے تړلے ــــ چه شئے نه وی نه مدت نه زمانه

زمانه یه فانی نه شی ــــ فانی به شی په بل صفت یګانه

په قدر خپل پوهیږی

احمد په قدر څه پوهیږی بیګانه

ه همدم زما دم ــــ که نیست و هست یم همی دم

زما هستی په هست شوه ــــ نیستی زړه جام جم

چه ګمان له میانه ووت ــــ عشق د یقین لاره کړه سم

لکه ګل کړم غنچه خلاص ــــ ژړا تاو کړه شبنم

که سحر زما وصال دو ــــ وصال عرق وکړو له سم

بلبل چه په ګل راشی ــــ په وصال ژړا کړی له غم

د بهار تل باقي راشي سحاب　　چه بلبل ووړي د ګل له ماتم
همېشه چه يار وينې　　سينه پاره سترګې پر نم
د دوئ د پاره ژاړي　　چه په وصال تل د هجر وي غم
د وصال خوند يې شپې دي　　که د رست عمر وي ده هم کم

په دنيا کښې سخت ساعت د غم دے
احمده څوک د لشو ستا په ظلم

لا له اصل روحاني يم　　په صورت کښې ژغېدلے لکه يم
څه شو که د صورت خال شوم　　کنه په اصل لامکاني يم
نن صورت زما وطن دے　　په وطن کښې بے وطنه وطني يم
وسکه اصل مې ويريادېږي　　چه په اصل يک جاني يم
د غفلت تيارو له مخه　　که فنا شي زه نور ظلماني يم
زه آشناے لره يکه ځم　　داسې نشته چه فلاني يم
که د عشق په ميخانه ځم　　د کفر په بتخانه يم

رايه زه ستا در ګدا يم
څه شوي که احمد شاه دراني يم

عزم اراده وکړه　　له علميته يې کره کړه
قدرت يې وکړه　　له نيستي هست ښکاره کړه
هست به نيست شي　　که هستي يې ورښکاره کړه
ذره اصل له بوده　　نن ځکه دا وعده کړه
نَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ　　نهم په دا فکر سره کړه
که له اصل د بانده دے　　ته سر زا دوراځله کړه

خپل اصل به مومې — د حق ولوري ته اراده کړه

احمده وځان وته وګوره

چه ستا خټه چا جوړه کړه

ته یو اکبر دې — د هر چا د زړه خبر دې

زړه ستا له غیرو — که د صاف د زړه دفتر دې

ستا هیڅ حجت نشته — چه را غلې پیغمبر دې

د رسول حکمونه نغوږه — چه ئې نه مني کافر دې

د عشق په لاره دروه — بې له عشقه لوئې خطر دې

که شها من حبل الورید — ولې په عاشق ئې تل نظر دې

غیرتنګ ناموس پرېږده — که د وحدت هوس اختر دې

ته له عشقه خبر نه ئې — چه بې مثله حوض کوثر دې

که په دامیو خبر شې — په پیریکړې سر سکندر دې

اصلي وطن به بیا مومې — که غوږ کړې د شیرین سر دې

ته زما خبره نغوږه — چه د دنیا عمر نازدیکر دې

چه د عشق په لوړه کښېوزې — د هغو نظر چرې په سیم زر دې

د سیم د زر مینه پرېږده — چه آخر کوچ بې خبر دې

د دې هسې دنیا هوس مکړه — چه پس له تا د بل پرې اختر دې

که هر څو نصیحت وکړې احمده

د دنیا سړې په غوږ وکړه دې

---

دَازل له بنهٔ پر بڼ ۔۔۔ خنک د بایلو ما تهین کڼ
دناسوت په ملک خوری ۔۔۔ خوره ییا نری له با بجن
اصل دے کمزه کوڼ وو ۔۔۔ خپل نصیب د ته پیشه کړه جاڅن
غافل اصل بیل کړه لما تهینکن ۔۔۔ غیر د زړهٔ دعشق په مقراض سکڼ
روح درا تلو په لار روان کړه ۔۔۔ چه مانز یکه د باقی مثال آستڼ
چه ده مثال ته ځائے راغے ۔۔۔ هغه به تیرشی داَصل له پټڼ
دا مثال دے دَ روح علم ۔۔۔ کمزه روح دوحدت د باغ مڼ
خپل گمان په ځان بلا دے ۔۔۔ دگمانه غیر کړه لرے یقین بڼ
که یقین باور دِ یقین شو ۔۔۔ د مقصود پری به ووینے له انګڼ
د مقصود پری چه مومی ۔۔۔ په هغه تل د معنی وی کڼ
چه د معنی معنے والی ۔۔۔ غه څوک د نفس پمه و باسی له کڼ
ارواح طوطی غه و سیری ۔۔۔ کمزوری زړهٔ خبر کړه له سجڼ
ملک خپل مکمزه نادانه ۔۔۔ ملک به خپل کړی د بنهٔ او با لهڼ
بنه په بنه لباس تیریږی ۔۔۔ د خواری جامه ته واچوه سنګڼ

له بینو بنهٔ عزا ره احمد شاهٔ

بد سپک کمزه ستر بڼ

روکه بدیم میخانه وطن ماست ۔۔۔ گر بمیریم در میخانه عشق کفن ماست
چونکه اسلام جوئیم میخانه رویم ۔۔۔ وز نور ایمان پرمے دهن ماست
ترک وجود زدیم از کنگرهٔ عشق ۔۔۔ یافتم لوح وجود عدم دفن ماست
مظهر نسانند از جلوهٔ دوکون ۔۔۔ دوکون رود عشق سراپرده مکن ماست
در صحرائے عدم سراپردهٔ عشق ۔۔۔ عشق گفت سراپرده عدم وجود عدن ماست

۱ۀ تخم. ۲ۀ نیغی کول. سکلبندل. ۳ۀ کمبریال. اتقزاچول. ۴ۀ کمروی. ۵ۀ منزه. سلب. ۶ۀ معشوقه.

از وجود دو کون کان آمد قریب — اصل هر کان در عشق در عدن ما ست

احمدا بیا قدم بر افلاک زنیم

نیستی ما هستی شکن ماست

زړهٔ که چیغارونه — د بهار په زیر ځلونه

که هر څو لړی خارونه — په سینه زما دي پرهارونه

ږغ به نه کړم له ادبه

که زړهٔ که ارمانونه — یار حاضر په شنهٔ خالونه

مخ صباح سترګې ځلونه — عجب زیب کاږ خسارونه

زړهٔ ئې یوړ زمار ربه

عجب ذوق و تماشه دی! — برابر کوهری بنا بسته ده

په قد سرو استاده ده — خوله ئې قند غنچه ئې خوږه!

زړهٔ زور که له جلبه

مخ ئې روح زلف ئې شپه — په عجبو کېنې عجب

ترجمه ئې ته عرب — یو نور ده زمار ربه

په حسن زړهٔ باسي له طلبه

مخ ئې سپین په شنهٔ خالونه — ورته چوری مېږن زړونه

په داسوی ځېګړونه — پړې یېنې په دا داغونه

زړهٔ ئې وکېښ له لرمونه

که په زړهٔ کړم ارمانونه — ارمان نه لسی لا سونه

د دلبر تنه خویونه — چه هیڅ نه که روزګارونه

زړۀ ئے وکیښلہ لرمونہ

سپینہ خولہ دِ راوُړہ          سپین غاښونہ شکرلاړہ
د رقیب بیړیٔ واوړہ          چہ تل لار لنبی د جاړہ

عجیب راغلہ چند نرلړلیہ غاړہ

کہ هرڅو کړم مینٔ توب          نۀ آرام کوُم نہ خوب
مینٔ ماکړہ لکہ چوب          پہ دا هسے رنګ زړۀ توب

احمد ہ آخر پاتے ددنیاکوب

نن یار زما          یوځے وړ زړۀ زما
غشو روزګار زما          عشق یو وړکار زما

عجیب زړۀ دے حصار زما

سحر سحر دے          د زړۀ نہ رب خبر دے
ماسرے ځکر دے          یار هغہ دے نہ دیګر دے

ځکہ د مینو زړۀ اختر دے

زړۀ ئے د وصالت پہ میو مست          ننګ ناموس ئے پرلښو هر چہ هست
زړۀ د مخ ئے لکہ طوطا شکر پرست          مینہ رم د زړۀ کوز چہ ډېہ ایست

واے ځوړم د ژوندون لہ دم

یو عجیب اشعار دے          د مینو زړۀ چیغار دے
وسکہ صفت د یار دے          چہ دا هسے پہ کوکار دے

زړۀ مشہ بے غم

د یار زلفے تار تار دی          د مینو زړۀ زار دی
غور پیدلی پہ رخسار دی          عجیب توږے لکہ مار دی.....

عالم لنبی لہ سحر ؏ بلبلے پہ چیغار دی ٭ ونیدلی پہ سحار دی ٭ مینٔ پہ لالہ زار دی ٭ بیګانہ لہ یارہ خوار دی ٭ مرمر

مم څوک بے یاره مشه طم

چه په زړهٔ ویښتلي بیدار دي　　خښتو که په کوکار دي

په خولګم په زړهٔ هوښیار دي　　په تن بیګانه مخلص دیار دي

مینه دے د کوی زیاتکم

دیار سترګے خمار دي　　راوبنتي په یار دي

جوړې کولئ د کندار دي　　ګوره دچا په تاتار دي

عاشق روغ مشه لهٔ زخم

دیار ویښلي یار دي　　شیے ګل سترګے انګار دي

د دهٔ تورے زلفے مار دي　　څه پیدلي په سر خمار دي

د ساقي له میږو مست

همے سترګے پرخمار دي　　په قد سرو د چمن زار دي

هم هیکل د چنار دي　　د عاشقانو په آزار دي

ځ چمن خال ئے ګلونه

که نګرم مینه　　هر ګوره ښایسته لرینه

داده دلبره نازنینه　　بے واکه زړهٔ وړینه

احمد ښایسته ده خوبتر آینه

نارے څو کوے بلبله　　زړهٔ دِ وُچاوُدله ګوګله

او که خبرے لهٔ ګله　　چه خزان پرے پاسته په بله

څکه چیغار که تل تتل

سن سحار دے　　په زړهٔ راغلے یار دے

یو د ندو کار دے　　له خوبه خوایه بیدار دے

احمد لکه بلبل په چیغار دے

که دزړهٔ کوکار دے　　یار دعشق بیدار دے
دمیین په یار دے　　خشرکه په دیدن خوار دے
دے ګل دلاله زار دے

دیار مینه مشکله　　چه نازکه ده له ګله
لکه داده تازه وله　　چه بے یاره دډیرې دله
احمده مینه دې په غلاوې کوله

دیار په مینه زړهٔ یم　　لکه کب په اوبهٔ یم
که هرڅو بیتو په خولهٔ یم　　ددے لا مکان مرغهٔ یم
احمده ماپرېښوده په لاهوت عین زړهٔ یم

عنوارد له خدائے دلربا　　په ډیر حسن محبوبا
چه همیشه والئ دارما　　دزړهٔ زړه صنه صفا
راته راکړه وما

په غم سینه کباب　　تل سوځی بے تاب
چه یار لیسے خراب　　څه وایم له دے بابه
څو به صبر کړم دوا

زړهٔ سوزی دجدائی له داغ　　جدائی سره پر بیاسی له دماغ
باد د ګلو خبر راوړه له باغ　　چه به کله عطر ورشی له دماغ
احمد شاه روح تازه شی له ایاغ

په خبرو مو شګاف　　بیهوده څو کړے ناانصاف
اول دزړهٔ سینه کړه صاف　　چه دزړهٔ سینه کړه صاف

د یقین توره به ووځي له غلاف

که خبر شې له طریق ‏‏‏— د زړه یقین به راشي له تحقیق
هره وینابه د زړه کړې تحقیق ‏— خلاص به نشې د نفس له حریق
جهان به ویینې قاف تر قاف

یقین د زړه دې بې ادراکه ‏— که سینه کړې ز غیر و پاکه
هر چار به بې ریا که ‏— د زړه به توره تماشا که
احمد شاه چه د مخ لرې ژړاکه

داوره اې غافله ‏— ولې ناست یې بې عامله
د عمر قافله تلله! ‏— د عمر غله د هیڅ و نه کړله
احمد شاه ځان به خوار کړې تر تل

بې یار نفس حرام ‏— ولې ناست یې ناکام
یاد کړه له مدام ‏— په یاد کړه خوش انجام
له زړه مشه بې آرام

که خبر شې له بدنه ‏— زړه د کل دې له چمنه
کړه سترګې روښانه له زړه ‏— چه خبر شې له مینه
پته نه ده کل اندام

که د د زړه خلوت وو ‏— دا خلوت د نصیحت وو
کنه بحث د اشارت وو ‏— اشارت یې معرفت وو
احمد شاه خبر شه له دوام

د نفس په غوله مکړه ابله ‏— خپل مقصود غواړه کمه
ځان باسه د نفس له څه ‏— د عمر لار کړه

څه امید کوے ترکه

د دنیا عمر تیریږی | غافل پیر هوسیږی
کم نادان په دا نازیږی | چه شیرین عمر تیریږی
احمد شاه مقصود غواړی له اَلله

د وریس قطاس زنځیریږی | په زړه زم او رلګیږی
میئن خپله بیلیږی | زړهٔ مینه نه سهیږی
د فراق اوښکے تو یږی
احمد شاه د بیلتون په زړهٔ خوږیږی

نه کړه وماته | بے تاوا یم وچاته
ژړاے ده وتاته | بے تا مینه ده میراته
څوک به خوږ وی بے له تا

تل ساقی ده الغیاث | عجب باقی ده الغیاث
هم فراقی ده الغیاث | سیره په ایراقی ده الغیاث
احمد شاه به ولے نه کوی ثنا

مست بے رواج | بے فروا له احتیاج
خوله وړی له باج | عاشق و مرله تاراج
خلاص به نه شی لا علاج

که خبر شی ته ما رُوح | د عشق له بنهٔ فتوح
ته به نفس کړے مذبوح | د غفلت تیاره شهٔ وی له صبوح
نور به ته بے محتاج
که دینا دی باندِ شوخ | او ربنتیا د ښیل ته شوخ

په اصل له خوار ته کلوخ　　په ګمان دِ سرو چ کره لوخ

احمد شاه غافل له اصله مزاج

دا دلبر باده　　پر اغلیه مرحباده
د دوو کونو شهاده　　دعاشق په سر سواده

بې عاشقه تور دچاده

د ښو ښه وینا لذیذ　　ښه وینا په ښو لګي لذیذ
د صحیح مزاج لقمه لذیذ　　له زر کام خوند نه وکا لذیذ

د دنیا خوند بې بنیاده

زړه به څه دایم دلدار　　سینه ئې د ښو بې پرهار
تا ر ې وهم بې کار　　کله به راشي بادِ سحار

احمد شاه د یار مینه کړ میلاد

زړه د سو له کډ ارزه　　مینې کوتک کړم له آوازه
څه دایم له دیه رازه　　د خون خوئ دې له بازه

احمد شاه معشوق کله کړي ساز

د آشنا غونډ ر اغلل بې قیاس　　زړه م وچاوډله وسواس
نادان به ومري له هراس　　مکر رحم وشي دیاس

کړه نشه بې حواس

زړه ولې او ترشه　　مسافر په دا سفر شه
پکېږه یا دې بیه بشر شه　　چه له ځانه بې خطر شه

زړه له مینې مه جار باسه

دیار مینه خلاصه　　ما کړه له اِ خلاصه

تائبی

سینه له زنګه خلاصه عشق صفا کړم له رصاصه
اے زما د زړه مواسه

دعشق له بنه دنیا ځنه غیر مینه کړه مقراضنه
فیض به مومے له ریاضنه ځان به خلاص کړے له امراضنه
نغوته پریږده له خناس

له دنیا مکړه اختلاط دا دنیا نالی رباط
له مینے کړه احتیاط مینه ئے نه توړه بے غلاط
احمد شاه ځان خلاص کړه له اختلاط

مینه زړه نیسی په وعظ بنه زړه له مینے منع کړی په وعظ
که مینه واے په وعظ واعظ په خپله کړه په وعظ
مینه کړ بنه نشی په ختام

زړه کړه سامع په قدرت د دیه صانع
په عمل ئے راجع چه خبر شے له نافع
احمد شاه په دا همت به شی رافع

---

شمس و قمر د درست جهان ئے یا رسول
هم ئے دین زمونږ ایمان ئے یا رسول
د خدائے په لوړے لوئیئ ئے اے حبیبه قبول په زمکه په آسمان ئے یا رسول
دا شرف دِ دے له خدایه چه مهتاب عزت تابان ئے یا رسول
په دوه کونه ئے سرور کړے
ځکه سرے سروران ئے یا رسول

ژړا ژاړي ژ موږ وتا ته　　　چه د هر حاجت امان ئې یا رسول
دا فخر ستا د امتیانو　　　د ماضي امت ځا جوړیا نې یا رسول

نفس شیطان رټې رټې کړو
کرم کړه زموږ پاسبان ئې یا رسول

جنت امت د واړه نا ژیږي　　　چه مهتر د ږهست جهان ئې یا رسول
چه د حبیب مکمل د حبیب دې　　　ته د ږهست جهان سامان ئې یا رسول

زړونه مړاوي غوندې ګلونه
د آب حیات باران ئې یا رسول

هلال له شرمه دوه ځایه کیږي　　　مخامخ ابرو کمان ئې یا رسول
چه د محبوب د عشق صفت شي　　　ته سرد عاشقان ئې یا رسول

احمد ستا د قدم خاورې!
که قدم ناوړې لرزان یا رسول

---

# رُباعِیات

یار مې سوړ کهٔ زړهٔ پورې ووې
آشنا به کله لا را ته ټکوړې
داستا خدنګ چې په زړهٔ ورِاسنهٔ شو
تر ځیګرې خټلې پورې را پورې

---

سحر سحار دې وقت د سحار دې
زړهٔ مې له غمه ګویا په دار دې
کهٔ تهیّه دې د دلبر د تللو که
زړهٔ مې کباب غونډِ په اور قرار دې

---

سحر صبا شهٔ وقت صبحدم دې
زړګې مې ړوب د آشنا په غم دې
د آشنا په غم به وړلې ړوب نهٔ یم
چې په زړهٔ مې یېن دې په جهان کم دې

---

را ایښه راغلېشه زما دلداره
یو دم غم واخله له خپله یاره
غم دِ پلو دې له مخه واخله
چې وبې موړ شي ستاله دیداره

---

زړهٔ مې په مینه د آشنا توړ که
آشنائی را پورې د مینې اور که
هېڅ تسلّی مې په څهٔ د زړهٔ نهٔ شي
غم دیار زړهٔ مې لکه تور سکور که

---

غم دیار ویتم لکه بل اور دې
زړهٔ مې کباب شهٔ لکه تور سکور دې
بې خپله یاره به څه روزګار شي
بنیادې بې یاره د غمګي کور دې

---

کۀ ژړا ړي ژاړي زړګے مے ژاړي — تلے آشنا مے را څخه غواړي
ګله به دیدن د مقصود نصیب شي — چه په دیدن مے زړګے ویاړي

---

زانګو ته څوک قطار قطار ځي — په هوا دن زړۀ کښېنے په څۀ کوکار ځي
له ولایته راځي په بیا رته — اوس بیا رته دروي پۀ چیغار ځي

---

چوي چوي د زړۀ هیر زړونه پیپے چوي — زړۀ مے لکه تے زړۀ هسے ړوي
ګله به مے ستا په وطن زړۀ میشته شي — چې مے ړے شي وږي سترګے په غمونو سوي

---

څۀ د ښائسته ګوره تر ښائسته ګل دے — زړۀ که بلبل دے بیا ستا د ګل دے
مینه به ولے ستا په ګل نه کړم — د مینے زړے مے شین ستا په ګوګل دے

---

په مخ زغلي مے داو ښیو حبابونه — چه را یاد شي د آشنا شنۀ شنۀ خالونه
که هر څو زړۀ صبروم را نۀ صبریږي — اوس بے واک شو داو ښیو بارانونه

---

پاس په مخ مے د آشنا زلفے داموونه — له هر لورے په پکښے تښتلي نادان زړونه
نادان زړۀ چه بیا له زلفو راجار باسي — نۀ خلاصیږے د قسمت له زنځیرونه

---

اوږدے که پراتۀ دي په سرو شونډو پیزوانونه — زړونه په اور سوه د چا نه رسي لاسونه
تل تل مې یادیږي د آشنا د مخ څلونه — باد سحر را وړۀ له خپل یاره پیغامونه

---

زړونه پُه واک وو اوس بې واکه له ما درومي    دم دم یادَوي ژړته دیار د مخ خالونه
هیڅ مې په لاس نه ورځي که هر څو سعي تلاش کړمه    نه که په دیدن دیار شنډم سرو نالونه

---

بیابیا که زړه مې بلا که    په بیابان سرشوم بې خوړاکه
زړهٔ دهوسي په څرنګ لیپې چوي    ښکاري له سترګو که بل جړاکه

---

هر څوك چه دوه سره خپله یاران وي    دَاغیار په سترګو کېنې ښکاره ماړ دي
دوفا څلونه چه زړه غونه شي    دمحبت به پرې تل یاران وي

---

چه زړه ستا په محبت ړنك دې    دَاغیار ځکه را سره جنګ دې
که په خپل یار باندې دیار نظر وي    اغیار په زړهٔ کېنې ورته پلنګ دې

---

راشه دزهیر زړه پهونو درد منده    هجران دِ وسوم دعشق په تنده
دوصال نعره به لاکله واورم    چه پرېشان خاطر پرې شي خورسنده

---

توره توره دعاشق کونه توره    یله مه واې د بیلتانهٔ اوره
جهان دقول سره اپرې کړه    ك خبر نه ې له خپله زوره

---

کهٔ تهٔ خبر شه زما عزیزه    ددنیا کښې د فهم تمیزه
خپل که پرده ورې ته یَو دې    دا ده په اصل کېنې بې تمیزه

---

کړي شي خبر د زړګي له رازه — شي به فارغ د دنیا له نازه
تمام جهان به درته سوړ او ړ شي — بې د آشنا له رازه نیازه

---

د رقیب خبره ده په زړه سخته — د آشنا که سخته ده په یار ګلوره
ته له جهان ورك شه رقیب — که په ځان خوشبوئ په زړه ترخ

---

زړه مې همیشه چې داد او فریاد که — همیشه په زړه کښې د خپل یار یاد که
زړه به کله لا د وصال مرغه شي — څو به هوا لا ستا د هوا دهکه

---

په زړه مې راغله توره بلبله — چې د ګل ثنا ئې همیشه ویله
خزان را پیرې یا سته د باغ ګلونه — په ارمان ارمان سره تر والو تله

---

زه چې همیش نعرې په سحر لرم — بې یاره نه یم دلبر لرم
اوس ئې هیڅ لوړې را ښکاره نه دي — ځکه او ترلیمې زړه او ستر لرم

---

د آشنا مینه مې تیره خنجر دے — د زړه په حال مې د خنجر سر دے
زما د زخم مرهم به وکړي — زه خپل دلبر ځم د ننګه لبر دے

---

روژه روژه ده عجب روژه ده — ورځ ئې ده سخته ماښام مزه ده
کله به تیره میاشت د روژې شي — په زړه مې د لوږې ډیره غلبه ده

---

راشه راشه اے زړهٔ مهینه — رقیب د بنسنهٔ دے لاړه وهینه
احتیاط کړه زړهٔ کوره پهٔ دالا رے — چه بے پو بنستے سر پرېکوینه

---

دانړهٔ زمادے که صحرا غرځنهٔ دے — پرے نهٔ پوهیږم زخمی پهٔ څهٔ دے
یار کېنږه خپل یار لیدلے نهٔ دے — چه بېلتانهٔ زخم ئے الیښے پهٔ زړهٔ دے

---

چه څوک خبروی ز پیاے رسی — کم زوئ دیلار ترځایه رسی
همه کاروته د خدائ پهٔ داد دی — څوک ځئ تېرشی ځئ ترپایه رسی

---

چه پهٔ خپل زړکی تهېروی الغیاث — بے تا څوک به ئے دستګیروی الغیاث
بے له تا چه اُمید ورته پاتو لشی — پهٔ غریب به ستا نظیروی الغیاث

---

زړکے اووت له کل رواجَ — دیار د زلفو یده تاراجَ
زړکے زمائے له کاره ولیوست — ادس شه قار غه له احتیاجَ

---

اے دعاشق زړکیه صالحَ! — سراسرور شو له جوارحَ
وقت دِ دغه دے که څهٔ تدبیر کړے — له ځان کارهٔ د غم شارحَ

---

که دور دے دورے د آشنا ے دور دے — زړهٔ لیسے حمهٔ زړهٔ ے رنځور دے
پهٔ بل هوادکه آشنا بیا نهٔ موم — زړهٔ کښے ے سوزی صورت تور دے

---

اوس یاران کهٔ ټکان دی　　په زړهٔ غلهٔ په خولهٔ به خاندی
کل ته بیرۓ په فریب دے　　لاف د یار د مینے کاندی

---

زلفے د یار ے بیا تار په تار دی　　زهٔ پرے پوهیږم زړنی د ښکار دی
بیا به څوک ېر زړهٔ پرے باندی ښکار کړے　　تا جوړے کړے په دغه کار دی

---

راغلے په مخ او ښکے قطارې نه　　اندیښنے مے په زړه خرخ دی د خار وُنه
د آشنا دیدن به مے خپل رحم کهٔ　　کهٔ روغ د زړهٔ شی سوی داغونه

---

زړهٔ کړے هر څو الا بلا که　　دلبر که کوم خپله رضا که
زړهٔ کړے زاری د حیا به څه وکه　　خپله رضا د خدائے په رضا که

---

زړهٔ مے زخمی دے که د ریادونه　　نسی به تا څوک د عرض لاسونه
کهٔ ته په داد و زهیرو رسے　　در ښکاره به کړم د زړهٔ داغونه

---

یار کهٔ هر څو جور و ستم لری　　یار به پته په یار د زړهٔ خم لری
په زړه پورے دهم خپل عاشق دے　　خشتو په خلقو کښے پر نظر کم لری

---

د غم د راغلهٔ په ما فوجونه　　تاخت و تاراج شوهٔ د زړهٔ کورونه
اوس مے زړهٔ ناست تش خالی کوهګل یم　　حُم په آشنا پسے بر دم قدمونه

---

توبه توبه شه د عشق له درده — چه تل ئې ګل کړم له آه سر ده
چه خپل یار دیم په خپلو سترګو — سینه مې ډک شي د غم له ګرده

---

اوستاد که ډیروالئ زما خه بنه دْ — چه دیار له غمه سینه پاره ده
له هغې ورځې چه له تا جدا یم — په سر مې ایښې د غم اره ده

---

زما په مخ که دا څه تیریږي — بحر د زړه مې په مخ بهیږي
اوښکې له سترګو مې په مخ روانې دي — که د زړه وینې دي چه را چلیږي

---

ګرانه د زړه ساتنه ګرانه — که عذر دواخست په سر آسانه
هغو چه زړه د خپل یار خندی کړه — بخره ئې لوړه له خپله ځانه

---

زړګې زما دې چه ډیر زهیریږي — چه خپل آشنائې تل تل یادیږي
چه خپل دلبر مې را ته په یاد شي — نه دوړ سترګو مې اوښکې توییږي

---

اې زما زړګی هلاک کړه! — بیلتانه په تا خپله تشه خواکه
څوک نارې وهي د جاپیر ته نشي — د زړه په خپله دې تسلي که

---

هر بوټي ګل دې یا که ګلزار دی — دیار په مخ مې همه پکار دی
په بوستان کې یاره زما په سترګو — هر ګل مې بات که نظر خار دی

---

سحار سحار دے وقت دسځا دے — زړګے زما په غم دخپل یار دے
هغه زړګے چه په یاد دیار نه وی — زړه نه مه بوله په سینه کښے خا دے

---

مخ دګل ترچا پیر خالونه دی — دویم په غاړه ئے سره سره لعلونه دی
که ښه نظرے پر باندے وکړی — پرپوړدلی دعشاق زړونه دی

---

دلاله په زړګی کوره عجب داغونه دی — دبلبلا نو پرے چیغارونه دی
جارشه عاشق ترهغه معشوق — چه دمعشوق په زړه ئے داغ پرهارونه دی

---

پرے عجب کوره لوے لوے غرونه دی — پکښے سره ښمنه رنګارنګ ګلونه دی
که تاسے وړو ښتئ تورے بلبلے — خودی ګلونه په دوی داغونه دی

---

زمے زړه کوره خوشحال دے — دیار په لوړدروی په عجب خیال دے
دآشنا په مینه کښے دا رنګ مست دے — چه ګوره ئے بے حال کړے په حال دے

---

راغله راغله په زړه بیا دآشنا مینه
بے اختیار هسے د زړه رسئ شکیږه
په هواد که لیپے لا پهم بیاسے نه مینه
څه عجب دے که مے زړه له غم مړینه

---

ختم شد

| | |
|---|---|
| کتاب ختم شو په دوشنبې | یارانو مونږ به څو تاسو دلې |
| په آخر روځ د روژې | سنه وو هزار و صد و شصت و سه |
| چې یاران څبله بیلیږي | په څه شان نه وه که غلبلې |
| آرام ور باندې نه دی | بیا په صبر ئې تسلې |

احمد په دعا یاد کړئ یارانو
چې په کار ئې شي په روځ غه څو لې

---

دا پورتنئ د دیوان خاتمه ده د بلې
نورې نسخې نه لیکلې ده.